# رباعي

یاره چې ته یې پر هغه لوري

غم خو دي نه وي بنا دي دې اوري

د مخ بربښنا دي یو وار ښکاره که

چې بنه جمال دي خواران وګوري

«مرحوم ملا حسن ساګزی»

درخشان






# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

مؤسس
**محمدولي زلمی**

سرپرست چلوونکی
**مطیع الله روهیال**

کتنپلاوی
ډاکټر عبدالرازق پالوال
څېړندوی شېرشاه رشاد
حیات الله رفیقي
عبدالکریم طالب
فضل محمد پنهان

کمپیوټر چاري
**پردېس روهیال**

**دریمه دوره**
**د ۱۳۹۲ش کال پنځمه ګڼه (لېندۍ - مرغومی)**
**پرله پسې ۶۰ مه ګڼه**

**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ور کول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کي د مجلې بیې**

| هیواد: ۲۰ - افغانۍ |
|---|
| پاکستان: ۵۰ - کلداري |

**کلنی ګډون**

| هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ |
|---|
| پاکستان: ۳۰۰ - کلداري |
| نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره |

پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست

## څېړنه



## ترجمه



## شعرونه



## خاطرې

د اداري یادابښت:

# سر له دې ګڼې ...

څه باندې نیمه پېړۍ پخوا په کندهار کې د مطبوعاتو مدیریت (اوس د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست) یوه مجله خپره کړه. د مجلې د وقایې پر تندي لیکلي وه: "آراکوزیا"، خو تر لومړۍ ګڼې وروسته "آراکوزیا" په "کندهار" واوښته. که څه هم "آراکوزیا" او "کندهار" په لړ و ډېر جغرافیایي تغیر د یوې سیمې نوم دئ، خو دې لفظي اوښتون د ځانه سره ښل پیغام لاره. په دې اوښتون کې تر ټولو لوی ارمان دا وو، چې دا مجله به د اوسني کندهار او همسایه ولایاتو د تاریخ، ادب، هنر او کلتور د ښېرازۍ او روښولو له پاره کار کوي. چې له نېکه مرغه دغه ارمان ته د رسېدو په موخه زموږ اسلافو خپل نهایي کوښښونه وکړل او تر موږه پورې ئې دغه روښانه مشال راورساوه. اوس دا په موږ اړه لري چې د خپلو اسلافو لګېدلی مشال څنګه تر راتلونکو نسلونو پورې رسوو؟

د کوم ارمان په موخه چې زموږ اسلافو دغه مشال بل کړی وو، موږ هم باید هغه لاره وپالو، څو دغه بل او روښانه څراغ تر هغو کسانو پورې ورسوو، چې موږ ته په تمه دي. په دې لاره کې ستونزې او مشکلات طبیعي خبره ده، خو د ناخوالو په مقابل کې مبارزه او درېدل د مېړنو لومړۍ خصوصیت دئ. د کندهار مجلې اوسنۍ وضعه ښه ده یا بده؟ په دې باب پرېکړه خپلو لوستونکو ته پرېږدو، خو موږ به تر خپله وسه دا کوښښ کوو چې خپل لومړي ارمان ته، چې د دې سیمې د تاریخ، ادب، هنر او کلتور پالل او روښول دي، ځانونه ورسوو.

سر له دې ګڼې څخه د کندهار مجلې مواد پر درو اصلي برخو وېشو:

لومړۍ برخه ئې څېړنیزو او تحقیقي مقالو او موضوعاتو ته ځانګړې کوو، چې په دې برخه کې به د لیکوالو او پوهانو تحقیقي او څېړنیز موضوعات خپرېږي.

دوهمه برخه پښتو ترجمې ته خاصه سوې ده، چې له نورو ژبو څخه به بېلابېل موضوعات لومړۍ په پښتو ترجمه کېږي او بیا به د کندهار مجلې په پاڼو کې نشرېږي.

دریمه او وروستۍ برخه مو د خپلو مشرانو لیکوالو او د دې سیمې د پوهانو او مخورو خاطراتو ته ځانګړې کړه، چې د دغو خاطراتو په خپرولو سره به نه یوازې دا چې موږ د خپلو پوهانو او لیکوالو په تېر ژوند خبر سوي یو، بل لا به زموږ په ځوانانو کې د خاطره لیکنې له پامه لوېدلی ژانر یو څه وغوړېږي، او له دې لارې به زموږ فرد فرد خپلو ورځنیو یاداښتونو ته متوجه سي تر څو په راتلونکي کې د خپل تېر ژوند ښې و بدې پېښې د خاطره لیکنې د ژانر له مخې لوستونکو ته وړاندې کړای سي.

د دغو درو اصلي موضوعاتو سره، د مجلې د لوستونکو د ذهني کش ماکشونو د لیرې کولو له پاره د "پېیلي مرغلرې"، "هنر و ادب" او "د بنګړو شرنګ" شعري تومنه هم ملګرې ده، چې تر دغو درو بېلابېلو عناوینو لاندې به زموږ نوي او زاړه، نارینه او ښځینه شاعران او شاعراني خپلې شعري پېرزوینې د مجلې پر اداره لوروي، موږ به د دوی له دغو پېرزوینو څخه د خوږو د لا خوندورتوب په موخه د مرچ و مسالې کار اخلو او د خپلو لوستونکو شعري او فکري تنده به په ماتوو.

د کندهار مجلې د لا پرمختګ په هیله



ليکوال: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا



# تېمور شاه مشر وو که سليمان؟

بسم الله الرحمن الرحيم - د افغانستان معاصر تاريخ يو څو خاصي نامعلومتياوي او مبهم تياوي لري چې پلټنه او ګروېړنه ئې ضروري ده. د داسي ناثابتو مسايلو څخه يوه هم دا ده چې آيا تېمورشاه مشر وو که سليمان؟ ما چې کوم تاريخي آثار کتلي او لوستلي دي، ځينو تېمورشاه او ځينو هم سليمان مشر بللی دئ. عجيبه دا ده چې په دواړو خواوو کي مشهور او تکړه تاريخ پوهان قرار لري، خو انګېرني ئې بېلي او ليري حتى برعکس دي. نو ځکه دا مسأله په څېړلو او شنلو ارزي.

ښه، احمد شاه بابا ۸ زامن لرل چې نومونه ئې دا دي: تېمور، سليمان، شهاب، سنځر، يزدان بخش، سکندر، داراب او پرويز (افغانستان در مسير تاريخ: ۳۵۷ مخ). خو متأسفانه په دې باره کي تاريخپوهان يو نظر نه لري. مثلاً مير غلام محمد غبار د شاه بابا اته زامن راپېژندلي دي چې ذکر سول، خو فيض محمد کاتب بيا وايي چې شاه بابا شپږ زامن لرل: د سنځر او يزدان بخش نومونه ئې نه دي ذکر کړي (سراج التواريخ، لومړی جلد، ۳۵ مخ). په همدې ترتيب تکړه څېړاند او تاريخپوه

عزیزالدین وکیلي پوپلزایي د شاه بابا زامن اووه ښللي دي، چې یزدا ن بخش ئې نه دی ذکر کړی (تېمورشاه دراني، لومړی ټوک، ۲۹ مخ). دا هم زموږ د معاصر تاریخ یوه بله نامعلومتیا او مبهم تیا ده. یعني دا چې تر اوسه لا ثابته نه ده چې د نننی افغانستان مؤسس اته زامن لرل که اووه او که شپږ؟!

په هر صورت، ځیني تاریخ پوهان وایي چې شاه بابا د خپلي کورنۍ غړي او نږدې خپلوان په دولتي چارو کي له مداخلې او ګډون څخه لیري ساتل، بلکي صرف خپل ولیعهد تېمور ئې د جهان خان پوپلزایي تر لارښووني لاندي د هیواد په ختیځو او لوېدیځو سیمو کي د سیاسي او نظامي چارو په مشق او تمرین کي پریښودی او سلیمان ئې د هغه د خسر او خپل وزیر (شاه ولي خان) تر روزني لاندی لرلی وو. همدا ګوښه توب او لیري والی دی چې تاریخ او خلکو د تېمور او سلیمان څخه پرته د شاه بابا نور اولاد پوره نه پېژندل حال دا چې هغه اته زامن لرل (افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۵۷ مخ). خو د یو بل روایت له مخې د لاهور والي تېمورشاه وو چې وروسته د شاه بابا تر وفات پوري د هرات والي وو. د کابل والي پرویز وو او د کندهار والي سلیمان وو (د درانیانو امپراتوري: ۸۱ – ۸۲ مخونه).

په هر صورت، اصلي موضوع د تېمورشاه او سلیمان د مشرتوب او کشرتوب ده. نو ښه به دا وي چې لومړی د ځینو مشهورو او پیاوړو تاریخ پوهانو انګېرني او نظریات رانقل کړو، بیا ئې مقابله او پرتله کړو.

سید بهادرشاه ظفر کاکاخېل مشهور تاریخ پوه داسي لیکي: "تېمورشاه د احمدشاه دوهم زوی و، په ۱۷۴۶ میلادي کال کي د احمد شاه تر پاچا کېدلو یو کال وړاندی وزېږېد" (د افغاني پاچاهانو ژوندلیک: ۳۹ مخ، د "پښتانه د تاریخ په رڼا کې: ۶۹۹ مخ" په حواله). له دې څخه معلومېږي چې مرحوم بهادرشاه ظفر د شاه بابا د لومړیو دوو زامنو څخه سلیمان مشر او تېمور کشر بولي.

بل مشهور تاریخپوه میر غلام محمد غبار دی چې داسي لیکي: "د احمدشاه ناروغي سخته سوه او په ۱۷۷۳ کال کي د کندهار له ښاره د معروف په سیمه کي د توبې غره ته ولاړ، دا ځکه چې هغه ځای ښه هوا درلوده. احمد شاه له دې سفر څخه مخکي په یو لوی مجلس کي خپل دوهم زوی تېمور د ولیعهد او خپل ځای ناستي په توګه معرفي کړ. د ده دا کړنه د هغه مهال د عنعنې سره مخالفه وه، ځکه چې تېمور تر خان یو مشر ورور درلود چې عادتاً هغه باید د پلار ځای ناستی کېدای. لاکن احمدشاه نه غوښته چې دود او رواج ته پر دولتي منافعو ترجیح ورکړي، ځکه د ده په نظر تېمور تر سلیمان عاقلتر وو" (افغانستان در مسیر تاریخ: ۳۷۲ مخ). له دې څخه ثابتېږي چې مرحوم غبار جداً په دې باور وو چې شهزاده سلیمان د شاه بابا مشر او تېمورشاه ئې کشر زوی وو.

بل اوځار تاریخپوه د هندوستان تکړه

پوهاند او څېړاند ډاکټر ګنداسینګهه دئ. هغه هم د خپل کتاب (احمد شاه دراني) په ۲۶۹ مخ کې سلیمان د احمد شاه بابا مشر زوی او تېمورشاه ئې کشر زوی بللی دئ. دغه کتاب په ۱۹۵۹ کې په لندن او بمبئي کې چاپ سوی دئ چې بیا وروسته په کابل کې په پښتو هم ژباړل سوی او خپور سوی دئ.

په همدې ترتیب قاضي عطاالله خان هم د خپل مشهور اثر (د پښتنو تاریخ، اول جلد، پېښور) په ۱۲۹ او ۱۳۷ مخونو کې سلیمان د شاه بابا مشر او تېمور ئې کشر زوی بللی دئ. هغه لیکي چې کله د شاه بابا ناروغي سخته سوه او د توبې غره ته ولاړ، هلته ئې له ښاره د دربار مشران راوغوښتل او وصیت ئې ورته وکړچې د تېمورشاه امر به منئ او هغه به زما ځای ناستی وي "ځینو مشرانو په ډېر ادب له احمد شاه بابا څخه پوښتنه وکړه چې تاسي په هر مهم کار کې د اولس د مشرانو سره مشوره کوله، خو تر تا وروسته د تېمورشاه د ټاکلو په باب کې مو زموږ رایه وانخیستله، او شهزاده سلیمان چې ستاسی مشر زوی وو، ولي ولیعهد و نه ټاکل سو؟

احمد شاه بابا په ځواب کې ورته وویل: د تېمور په ټاکلو کې زما خپل ذاتي غرض هیڅ نسته. زما اصلي مطلب او غرض د افغانستان د خلکو ښېګڼه ده. په دې کې شک نسته چې تېمور تر سلیمان کشر دئ، خو هغه د خپل وروړسلیمان په نسبت د حکومت چلولو زیات قابلیت او لیاقت لري" (۱۲۹ مخ).

بل څېړونکی او لیکونکی هم د پښواني صوبه سرحد یا ننني خیبر پښتونخوا وروستی انګرېز مشر (سر اولف کېرو) دئ چې (پټانز – پښتانه) ئې ځورا مشهور اثر دئ. دغه کتاب هم په پښتو هم ژباړل سوی دئ چې په ۳۸۹ مخ کی ئې داسي راغلي دي: "د احمد شاه بابا پر ځای د ده زوی تېمورشاه پاچا سو، تېمورشاه تر ټولو مشر نه وو، خو د احمد شاه بابا غوره زوی وو".

ښه، دا هغه مشهور او نومور تاریخپوهان دي چې سلیمان د احمد شاه بابا مشر او تېمورشاه هم د هغه کشر زوی بولي. ښایي نور تاریخپوهان او څېړندویان به هم وي چې کټ مټ نظر به لري، خو زه ئې آثار نه لرم.

اوس به راسم هغو مشهورو تاریخ پوهانو ته چې برعکس نظر لري، یعني تېمورشاه مشر او سلیمان کشر بولي. په دې لړ کې تر ټولو اوڅار لیکوال محمود الحسیني دئ چې د احمد شاه بابا د سفر او حضر ملګری وو. هغه د شاه بابا د هر مأموریت او فعالیت یعني د ټولو اړونده پېښو او پرمختیاوو عیني شاهد، منشي او لیکونکی وو. محمود الحسیني په خپل خورا مشهور اثر (احمد شاهي تاریخ) کي داسي لیکي: "د شاه بابا تر وفات وروسته شاهزاده سلیمان په ناخوښۍ سره پر تخت کښېناست او د عبدالخالق خان ولدِ رحمن خان سدوزایي په ذریعه ئې خپل مشر ورور شهزاده تېمورشاه ته چې د پلار غوندي ئې د هغه احترام کاوه،

هرات ته لیک ولېږي..." (۵۱۸ مخ). څنګه چي محمود الحسیني د پېښو او پرمختیاوو عیني شاهد وو، نو د ده خبره ثقه او معتبره ده. یعني دا چي تېمورشاه د اعلیحضرت احمد شاه بابا مشر زوی دئ چي شهزاده سلیمان د پلار غوندي احترام ورته درلود.

اوس به د نونسمي پېړۍ د یو مشهور لیکوال او درباري منشي (کاتب فیض محمد) نظر وپلټو چي د امیر حبیب الله خان رسمي لیکونکی او منشي وو. هغه د سراج التواریخ د لومړي ټوک په ۳۵ مخ کي داسي لیکي: "وزیر شاه ولي خان چي د اعلیحضرت احمدشاه تر وفات وروسته د خپل زوم سلیمان له پاره سلطنت غوښت، نو هغه ئې پر تخت کښېناوه او شهزاده تېمور چي په هرات کي وو، د یو لښکر سره مخ پر کندهار راوخوځېد... څنګه چي شهزاده د خپل کشر ورور سلیمان د تخت کښېناستلو څخه خبر سو چي د وزیر شاه ولي خان په ذریعه سوی وو، ورڅخه خوابدی سو او د بکوا د لوېدیځ په سیاه آب کي ئې انکوخان ته وظیفه ورکړه چي وزیر شاه ولي خان ووژني او هغه هم د اسلام خان په ملګرتیا نوموړی د خپلو دوو زامنو او دوو خوریانو سره ووژی".
پس دا معلومه سوه چي امیر حبیب الله خان او فیض محمد کاتب هم په دې رایه ول چي تېمورشاه د احمد شاه بابا مشر او سلیمان ئې کشر زوی وو.

بل معاصر تکړه څېړونکی او پلټونکی هم مرحوم عزیزالدین وکیلي پوپلزایي دئ. هغه په خپل مشهور کتاب (احمد شاه: وارث و مجدد امپراتوری افغانستان ـ اول جلد) کي داسي لیکي: "احمد خان درانی د ۱۱۵۳ هجري قمري کال راهیسي د خپلو وروڼو او اکاګانو او څو نورو دراني مشرانو، خدمتګارانو او پوځي دفتروالو سره د خراسان په مازندران کي اوسېدی. د دې افغان سرلښکر درنه کورنۍ هم هلته ورسره اوسېدله. په ۱۱۳۵ لمریز کال کي چي د ۱۱۶۰ قمري کال د محرم او صفري سره سمون خوري د احمد خان په کور کي د درانیانو د لومړۍ ملکې له بطن څخه زوی وزوکېد. احمد خان پر خپل دغه زوی باندي چي د ګورګاني امیر تیمور د زوکړي څخه ۴۲۴ کاله وروسته وزوکېد، د تېمورشاه نوم کښېښود... پنځه میاشتي وروسته نادر افشار ووژل سو او احمد خان درانی د افغانستان پر شاهنشاهي تخت باندي کښېناست" (۲۰ مخ). وکیلي زیاتوي چي د تېمورشاه د زوکړي پر مهال احمد شاه بابا لا پاچا سوی نه وو، خو څنګه چي د افغان سلطنت حقدار او وارث وو، نو د مشهد د موسوي سیدانو څخه میرزا عبدالهادي خان د احمد خان د دغه لومړني زوی تولد د افغان سلطنت لړۍ بولي او په شعر کي ئې داسي ستایي:

جهان شـــهریاری زکـــتم عـــدم
قـــدم زد به صـــحرای هستی ازان
که بخشد ضیا عالم از بهر خویش
چـــو تابنده خورشید بر آســـمان
بـــر وی نثارش ســـپهر بـــرین
فـــروریخت ســـیم و زر اختران

سز دگر شه بحر و بر برنهد
سر خویش را بر این آستان
زیمن قدومش شد آراسته
عذار جهان چون رخ گلرخان
از انوار پیشانیش ظاهر است
که گردد چو خورشید گیتی ستان
بیک مصرع تام تاریخ او
زپیر خرد جستجو شد نهان
بگفتا جهانگیریش ظاهر است
بگویید تیمور صاحبقران
(۱۱۶۰ هجري قمري)

د مرحوم عزیزالدین له پورتني وضاحت څخه ثابتېږي چې د اعلیحضرت احمد شاه بابا مشر زوی او لومړنی اولاد تېمورشاه دی.

دا لا څه، مرحوم عزیزالدین وکیلي په خپل بل مشهور اثر (تیمورشاه درانی، اول جلد) کې واضحاً لیکلي دي چې تېمورشاه د احمد شاه بابا مشر زوی دئ او زیاتوي چې پخپله شاه بابا په ۱۷۶۱ میلادي کی هغه ته د مشر زوی خطاب کړی دئ (۵۵مخ).

بل تاریخپوه میر محمد صدیق فرهنګ دئ چې تېمورشاه د احمد شاه بابا مشر زوی او سلیمان ئې کشر زوی بولي. هغه داسي لیکي: "که څه هم احمد شاه د خپل مشر زوی تېمور شاه سره ډېره مینه لرله او لکه چې ومو لیدل ډېره هڅه ئې وکړه چې هغه د کوچنیوالي څخه لا د هیواد د چارو سره روږد کړي. خکه نو د ده دربار د هغو سیالیو څخه خالي نه وو چې د خاې ناستي پر سر د ختیځ د امیرانو او شهزاده ګانو تر منځ معمول وې.

د احمدشاه دوهم زوی شهزاده سلیمان د صدراعظم شاه ولي خان د لور سره واده کړی وو او نوموړی وزیر چې د ټولو سردارانو او فیوډالانو په رأس کي وو او په دولتي دستګاه کي تر ټاچا وروسته دوهم نفر ګڼل کېدی، تل دا کوښښ کاوه چې تر احمدشاه وروسته د ده زوم شهزاده سلیمان د خپل پلار خای ونیسي (افغانستان در پنج قرن اخیر: ۱۵۹ مخ).

د افغانستان بل نومور او دقیق تاریخپوه مرحوم احمدعلی کهزاد هم وایي چې تېمورشاه د احمد شاه بابا مشر او سلیمان ئې کشر زوی دئ او زیاتوي: «که څه هم چې د احمدشاه درانی تر وفات وروسته د هغه وزیر شاه ولي خان د احمدشاه کشر زوی سلیمان شاه یعني خپل زوم پر تخت کښېناوه خو ډېر وخت تېر نه سو چې شهزاده تیمور له هرات څخه راغی او د قوم د زیاتو مشرانو د خوښی او رضائیت سره سم پاچا سو" (رجال و رویدادهای تاریخی افغانستان: ۳مخ).

د افغانستان او سیمي منلی او پیاوړی څېړاند، پوهاند او هڅاند تاریخپوه علامه عبدالحی حبیبي هم په دې رایه دئ چې تېمورشاه د احمدشاه بابا مشر او سلیمان ئې کشر زوی دئ. علامه حبیبي داسي لیکي: "د احمد شاه بابا تر وفات وروسته د اتو زامنو له منځه ئې کشر زوی شهزاده سلیمان د وزیراعظم شاه ولي خان په مرسته په کندهار کي پاچا سو. ولي د هغه مشر زوی تېمور چې د پلار په ژوند کي د لاهور او ملتان والي وو، او

هلته ئې سکه هم وهله او دا مهال په هرات کې والي وو، فوراً مخ پر کندهار راوخوځېد. سلیمان ئې بې واکه او شاه ولي خان ئې ووژی" (تاریخ مختصر افغانستان: ۲۷۱ مخ).

بالاخره د هیواد او سیمي اوځار او نامدار استاد علامه رشاد بابا هم دقیقاً او منطقاً تېمورشاه د اعلیحضرت احمدشاه بابا مشر زوی او سلیمان ئې کشر زوی بولي. علامه رشاد بابا داسي لیکي: "شهزاده تېمور، چي تر پاچا کېدلو وروسته، په تېمورشاه سره شهرت لري، د غازي ستر ټولواک لوی فاتح اعلیحضرت احمدشاه بابا رحمة الله علیه مشر زوی دئ" (احمد شاهي شاهنامه: ۶۷۱مخ).

دا ول څو هغه محترم او معظم پوهان او د هغوی مهم او مغتنم آثار چي ځینو تېمورشاه او ځینو هم سلیمان د احمدشاه بابا مشر زوی بللی دئ. اوس که د دغو علماوو او فضلاوو انګېرني ښه مطالعه کړو، بیا ئې پرتله او مقابله کړو، نو علماً او منطقاً به ومنو چي تېمورشاه د شاه بابا مشر او سلیمان ئې کشر زوی دئ.

په دې اړه چي تېمورشاه د سن له مخي د شاه بابا مشر زوی دئ، کوټلي او ټاکلي قراین وجود لري، یعني:

لومړی: هغه مهال چي تېمورشاه لا دوه کلن وو، د شاه بابا له خوا د هرات د دارالسلطنه د واکمن په حیث وټاکل سو. حال دا چي هغه مهال د شاه بابا د نورو زامنو او د هغوی د دندو او دریځونو په هکله هیڅ شی (هیڅ نوم و نښان) هم نه وو. یعني د شاه بابا د نورو اولادو قطعاً نوم نهٔ دئ ذکر سوی (افغانستان در پنج قرن اخیر: ۱۵۸ مخ).

دوهم: په هغه فرمان کي چي شاه بابا د ۱۱۷۵ هجري قمري کال په ربیع الاول (۱۷۶۱ میلادي کال) کي د کندهار څخه هرات ته ورولېږی، تېمورشاه ته ئې د خپل مشر زوی (فرزند ارشد) خطاب کړی دئ، یعنې: "آنکه فرزند عزیزالقدر ارشد ارجمند سلطنت و شوکت و حشمت دستګاه..." (تېمورشاه درانی، اول جلد، ۵۵مخ).

دریم: تېمورشاه ځکه د شاه بابا مشر زوی او سلیمان ئې کشر زوی دئ چي د لوی احمدشاه بابا د دربار منشي باشي هادي خان عشرت په هغه قصیده کي چي د شهزاده سلیمان د واده په مناسبت ئې ویلې ده، شهزاده سلیمان د احمد شاه بابا منځوی زوی بللی دئ (احمد شاهي شاهنامه: ۶۷۱ مخ):

ز بهر اوسطی فرزند دلبند
قمر سیما نګاری ګشت خواهان

ښه، د پورتنیو درو عمده دلیلونو او مدرکونو له مخي نور نو علماً او منطقاً ثابتېږي چي تېمورشاه د اعلیحضرت احمدشاه بابا مشر زوی دئ نه سلیمان. زه (یعني دغه لیکوال) مخکي په همدې فکر وم چي شهزاده سلیمان پر شهزاده تېمور باندي مشر دي. خو اوس د پورتنیو علمي او عیني شواهدو پر اساس خپله مخکنی انګېرنه تعدیل او تبدیلوم او نور نو تېمورشاه

د شاه بابا مشر زوی او سلیمان ئې کشر زوی بولم.

هیله ده چي د افغانستان د معاصر تاریخ د څو خاصو نامعلومتیاوو او مبهم تیاوو پر تیاره اړخونو دغسي علمي روښا واچول سي، زنګ او منګ ئې پاک او صیقل سي. داسي نوښت او ځلښت زموږ ځوانانو ته معطل دئ.

اړونده مأخذونه:


۱. تاریخ احمد شاهی: محمود الحسینی المنشی ابن ابراهیم الجامی، تحشي و تعلیقات: پوهاند دکتور سرور همایون، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور، ۱۳۷۹ لمریز (۲۰۰۱ میلادی).
۲. افغانستان در مسیر تاریخ: میر غلام محمد غبار، کابل، ۱۳۴۶ شمسي (۱۹۶۷ میلادي).
۳. سراج التواریخ (جلد اول): فیض محمد کاتب، کابل، ۱۳۳۱ هجري قمري.
۴. احمدشاه: وارث و مجدد امپراتوری افغانستان، (جلد اول): عزیزالدین وکیلي پوپلزایي، کابل، ۱۳۵۹ شمسي.
۵. تېمورشاه درانی، (جلد اول): عزیزالدین وکیلي پوپلزایي، کابل، ۱۳۴۶ شمسي.
۶. درانی احمد شاه، ډاکټر ګنډا سینګهـ، ژباړن: نصرالله سوبمن منګل، کابل، ۱۳۶۶ لمریز.
۷. د درانیانو امپراتوري: یو. و . ګانکوفسکي، ژباړن: پوهندوی دکتور ګل محمد نورزی، کابل، ۱۳۵۷.
۸. احمد شاهي شهنامه: حافظ مرغُزی، پېژندنه او تعلیقات: پوهاند رشاد، کندهار، ۱۳۸۷.
۹. افغانستان در پنج قرن اخیر، میر محمد صدیق فرهنګ، مشهد، ۱۳۷۱.
۱۰. پښتانه (پټانز): سر اولف کېرو، ژباړن: الحاج شېر محمد کریمي، دانش کتابخانه، پېښور، ۱۳۷۸ لمریز (۱۹۹۹ میلادي).
۱۱. د افغاني پاچاهانو لنډ ژوند لیک (دوهم چاپ): بشیراحمد ریان، صدیقي خپرندویه ټولنه، کویټه، ۱۳۷۹ لمریز.
۱۲. رجال و رویدادهای تاریخی افغانستان: احمد علی کهزاد، دانش کتابخانه، پشاور، ۱۳۷۶ شمسي.
۱۳. تاریخ مختصر افغانستان (چاپ سوم): مرحوم عبدالحی حبیبی، دانش کتابخانه، پشاور ، ۱۳۷۷ شمسي.
۱۴. د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک: قاضي عطاء الله خان، پېښور.


* * *

هارون خپل شعشعي/لندن

# اوسپنيز که اوسپنين؟

"اوسپنه" د پښتو لرغونې ټکی دئ، چې د اویستا/اوستا له هوسفنه (Haosafna) څخه راوتلئ ښکاري؛ څکه چې په اویستا کې بې (به يې) له اوسپني څخه جوړ سوي شي ته هوسفينه (Haosafnaena) ویل[1]. دا ټکی د پښتو په لرغونو متنو کې د " اوربل"، "اوربنت"، "اوریځ"، "اورېدل"، "اوربشي"، "اولجه" او داسي نورو ټکو غوندي، له الف سره ليکل سوئ دئ؛ خو نن سبا يې زموږ ځيني ژبپوهان، ليکوال، شاعران او ژورناليستان بې الفه کاري. "اوسپنه" د پښتو په وېښځي لهجه کي "اوسپنده" او د مَقُر په سيمه کي "اورسپنه" ويله کېږي[2].

د خوشال خان خټک (۱۰۲۲ - ۱۱۰۰ هـ ق) په کُلياتو کي څو ځايه "اوسپنه" راغلې ده؛ مثلاً په "دستار نامه" کې (کي يې) داسي راوړي دي: "اوسپنه پيدا ده چه توره شي. که د اُستاد تر لاسه ورغله، توره ځني سازه شوه ...»[3]. د متفرقاتو په يوه بيت کې د جمعي اضافي حالت (genitive) داسي راغلئ دئ:

**که د اوسپنو په کوټ کي ځان خوندي کړې!**

**عـزرائيل به دي خــــبر واخـــــــلي دننه[4]**

رحمان بابا هم د خپل دېوان په يوه بيت کي د "اوسپني" ټکی داسي راوړئ دئ:

**نصيـــحت د ناصحـــانو اثر نه کا**

**د سرې اوسپني خوشي ټکول دي[5]**

په دې وروستيو کلو کې د اوسپني په پای کي د "يز" شاوندي يا وروستاړي (suffix) په زياتولو سره د "اوسپنيز" صفت جوړ کړئ دئ؛ او دې بهير اوس دونه زور اخيستئ دئ، چي د ژبي و طبيعي رنگا رنگی او ښکلا تې (ته يې) خورا لوی تاوان پېښ کړئ دئ. په دې ناوړه کار کي هم د "سوچه پالني" لاس پروت دئ؛ په دې چي د عربي، پاړسي او اوروپايي ژبو هر اشنا او مأنوس ټکی د پردي توب په گونا له پښتو ژبي ايستل کېږي؛ او پر ځای يې مروړلي، بې خونده، نا اشنا او ترجمه سوي ټکي درول کېږي. کله کله خو داسي لا هم ښکاري، چي کې د يوې خودساخته او لغوړني پښتو کليمې د وروستی برخي له پاره نور څه و نه موندل، بيا نو د دېگ د مالگي يا مسالې غوندي د "يز" شاوندی ورسره ملگری کيي (کوي)، چي په دې توگه د چا خبره "پښتو رنگ" واخلي. شک نسته، چي د "يز" په کومک د يو و نيم صفتو جوړول بده خبره نه ده؛ خو دونه بايد زيات نه سي، چي زموږ و خوږې او سپېڅلي ژبي ته جعلي، يکنواخته او بې خونده جوله ورکي؛ او د خلگو خوا ځني و گرځي. انگرېزان وايي: (too much of

(everything is bad، عربان وايي: "خيرالامور اوسطها"، پارسي واثان وايي: "هر چه از حد بگذرد رسوا شود"، کنداريان وايي: "چي ډېرى سي مورداری/ مرداری سي". دا خبره تر لمر روښانه ده، لکه څنګه چي د انسان په وجود کي د يوه عنصر يا مادې ډېرښت و ډول ډول ناجوړيو او پرابلمو ته لار پرانيزي، په ژبه کي هم د جعلي، تکراري او بې خونده ټکو، ترکيبو او عبارتو ډېرښت، د هغې و خوند، ښکلا او جذابيت ته لوی زيان پېښيي؛ خو د ناپوهۍ، تعصب او تنګ نظرۍ په ناروغۍ اخته کسان به دې ساده او روښانه حقيقت څوک پوه کيي؟!

خير، دا ؤ زموږ په اوسنۍ بدخونده رسمي او مطبوعاتي پښتو کي له اسمو (nouns) سره د "يز" شاوندي يا پسوند په کومک د بې شماره توصيفي کليمو يا صفتو (adjectives) د جوړولو داستان. اوس راځو د خپلي اصلي پوښتني و سپيناوي ته، چي ايا "اوسپنيز" سهي دئ که "اوسنپين"؟

په يوه سرسري او سطحي نظر خو داسي برېښي، چي "اوسپنيز" تر "اوسپنين" ډېر ښه او معقول دئ؛ ځکه تر غوږو مو ډېر اشنا او مأنوس دئ؛ په ورځ کي لس واره لولو يا اروو؛ خو که د پښتو پخواني متون تر نظر تېر کو، ښايي بيا پر دې خبره ټينګ و نه درېږو. پير روښان په خپل مشهور ديني- عرفاني اثر (خير البيان) کي له اوسپني څخه جوړ سوئ شی (څيز) د اوسپَرين/ اُسپَرين (ūsparín/usparín) په نامه ياد کړئ دئ. د "اوسپرين/ اُسپرين" مذکر صفت د «خيرالبيان» په ( ۶۷ - الف) مخ کي داسي راغلئ دئ:

"...که اُسپرين يا سرولين يا دا هسي نور کالي يا تېغ پليت شي"[۶].

د پښتو ادب فاضل او کامل استاد - اروانښاد علامه عبدالشکور رشاد (۱۳۰۰ ش/ ۱۹۲۱ع - ۱۳۸۳ ش/ ۲۰۰۴ ع) د (خيرالبيان) په لغتنامه کي د "اوسپرين/ اُسپرين" د وروستي شاوندي په اړه داسي کښلي دي: "په دغه کلمه کي فشار لرونکی (ín) د نسبت شاوندی (suffix) دئ او د نارينه موصوف له پاره پکارېږي. د مفرد مؤنث له پاره (□) او د جمعي مؤنث له پاره د کندهار په لهجه کي (i) او د پېښور په لهجه کي (e) ورپسي نښلي"[۷].

"اوسپرين/اُسپرين" کليمه د روښاني ادبي - عرفاني مکتب پر څينو پيروانو سربېره د څينو نورو معاصرانو په اشعارو کي هم راغلې ده؛ مثلاً د خوشال خان خټک زوی، عبدالقادر خان خټک، په خپل ديوان کي داسي وايي:

**د زړه مست لـره د زلـفو زنځـــير بويه**
**په اوسپرين زنځير دا مست تړلی نشي**[۸]

په دې خبره مي ښه او دقيق سر نه خلاصېږي، چي (ړ) توري څنګه د پير روښان په "خيرالبيان" کي د "اوسپني" و توصيفي شکل (اُسپرين) ته لار پيدا کړې ده؟ ځکه د "ين" شاوندي په مرسته له اسمو څخه د صفتو په جوړولو کي د (ړ) بله نمونه او مثال نه مومو؛ حال دا چي په پښتو ژبه او ادب کي د دې ډول صفت جوړولو ورشو ډېره پراخه ده؛ مثلاً په پښتو کي له پېرييو پېرييو راهيسي

ډبرين (ډبرينه مځکه)، خاورين (خاورين لوښی)، ختين (ختين کور)، زرين (زرين کالي، زرين ټوکر، زرينه لونګۍ)، څرمين (څرمين تېکی)، غلمين (غلمينه ډوډۍ)، اوربشين (اوربشينه ډوډۍ) او داسي نور صفتونه لرو، چي په وار سره له "ډبره"، "خاوره"، "خټه"، "زر"، "څرمن"، "غنم" او "اوربشه" څخه جوړ سوي دي. مخکي مو د "خيرالبيان" په متن کي وليدل، چي پير روښان، د هغه څه له پاره، چي نن يې موږ مِسينه، مِسين يا مِسي لوښي (copperware) بولو، د سُروَلين (surwel+ín) يا سُروِلين (surwal+ín) ټکی کار کړئ دئ، چي هغه هم د جوړښت او ريښې له پلوه له "ډبرين"، "خاورين"، "ختين"، "زرين"، "څرمين" او داسي نورو سره بشپړ سمون او برابري لري. مالومېږي، چي د پښتو ژبې "ين" شاوندی له پارسي "ين" سره مشترکه تاريخي ريښه لري؛ ځکه په پارسي کي هم د دغه راز صفتو له پاره "آهنين"، "زرين"، "چرمين"، "گلين"، "سفالين"، "مرمرين"، "زمردين"، "آتشين" او داسي نور صفتونه کارېږي.

له دې استدلال او ادبي شواهدو څخه دا نتيجه تر لاسه کيږي، چي د عامو خلګو په خبرو او محاورو کي د "ين" په موښلولو سره جوړ سوي صفتونه تر هغو توصيفي کليمو ډېره اوږده سابقه او پراخ استعمال لري، چي نن سبا د "يز" شاوندي په مرسته جوړيږي. که چيري زموږ ژبپوهان او لغت جوړونکي د خپلي ژبي په لرغونو متنو، ګرامري جوړښتو او لغوي زېرمي ښه خبر وای، بيا بې (به يې) په پټو سترګو د "اوسپنيز" غوندي ترکيبي صفت و جوړولو ته زړه نه ښه کولای، چي نن زموږ د رسمي او مطبوعاتي ژبي نه بېلېدونکې برخه ده؛ او په ورځ کي شل پلا دوري هوري تکرارېږي. کله چي له پېړيو پېړيو څخه تر اوسه پوري، نور همجنسه اسمونه لکه: «زر»، «مس»، «ډبره»، «خاوره»، «خټه»، «مرمر»، «څرمن»، «لرګی» او داسي نور د «ين» وروستاړي په زياتولو سره د «زرين»، «مسين»، «ډبرين»، «خاورين»، «ختين»، «مرمرين»، «څرمين» او داسي نورو په صفتو اړوو، د «اوسپني» د توصيفي ټکي له پاره ولي بايد د بلي قاعدې پيروي وکو؟! که څوک «زرين»، «ډبرين»، «خاورين»، «ختين»، «مرمرين» او داسي نورو ته «زريز»، «ډبريز»، «خاوريز»، «ختيز»، «مرمريز» او داسي نور ووايي، ايا دا به د خندا وړ نوښت او بدعت نه يي (وي)؟! ځکه ژبپوهنه، ادبپوهنه، لغتپوهنه، ګرامر او نوري علمي څانګې هيڅ يو د دې کار ملاتړ نه کيي. ناحقه يې نه دي ويلي:

**کبوتر با کبوتر، باز با باز**

**کند همجنس با همجنس پرواز**

## لمنليکونه:

١. پوهاند عبدالشکور رشاد، «لغتنامه»، خير البيان د بايزيد روښان (کابل: د کابل پوهنتون د ادبياتو او بشري علومو پوهنځی، ١٣۵٣) ٣.

٢. رشاد ٣.

۳. محمد معصوم هوتک، له کندهاره تر اټکه: د پښتو په کلاسیک ادب کې د لوېدیځې لهجې څرک (کندهار: علامه رشاد خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۹) ۹۹– ۱۰۰.
۴. خوشال خان خټک، د خوشال خان خټک کلیات، د عبدالقیوم زاهد مشوانی اوډنه، پرتلنه، سمون او وییپانګه (کابل: دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴) ۶۱۱.
۵. هوتک: ۱۰۰.
٦. بایزید روښان، خیرالبیان، د پوهاند عبدالحي حبیبي له سریزې او نورو ضمایمو سره، عکسي چاپ، (کابل: د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو پوهنځی،۱۳۵۳) ۶۷–الف.
۷. رشاد ۳.
۸. هوتک ۱۰۰.

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- شهرت د سترتوب د پای ته رسیدلو پیل دئ.
- زموږ په هکله زموږ تر خپلو نظریو زموږ د دښمن نظریې حقیقت ته نژدې دي.
- د شخړې عذاب د هغې تر ګټې ډېر دئ.
- هغه کسان چې د جګړې په وخت کې تر ټولو په لوړ اواز د هیواد پالنې چیغې وهي هغوی تر ټولو غټ منفعت پرستان دي.
- ښځه به پخپله هم په اور کې سوځي خو د عاشق په سوځېدلو ډېره خوشحاله کېږي.
- د مفکورو اختلاف فاجعه نه بلکې یو فرصت دئ.
- د لویانو په خلاف، ماشومان لږ دې ته اړ دي چې خپل ځان وغولوي.
- هغه څوک چې د زده کړې له پاره خپل ځان زور ورته ایسي ښایي چې هیڅ وخت به ځوان نه وو.
- د ساده شیانو څخه خوند اخیستل د مغلقو خلکو له پاره وروستی پناهګاه ده.
- قهر سړی د حقیقت څخه لیرې کوي.
- انسان او طبیعت چې سره جمع سي نو هنر ځنې جوړ سي.
- د ژوند هنر د غیږې ایستلو د سپورټ په شان دئ، په دغه لوبه کې باید انسان کلک ودرېږي او هر ناڅاپي برید ته تیار واوسي.
- هغه څوک چې خپل ځان رسوي د ټولنې په رسولو کې برخه اخلي.
- ښورښ د هغه چا ژبه ده چې څوک ئې پر خبره غوږ نه نیسي.
- زه ډېر شتمن یم ځکه چې ښه ملګري لرم.

***



ډاکټر عبدالرازق پالوال PH. D.

# ولي د "زرو یوه شپه" داستانونه؟

څه شپېته کاله ترمخه چي زه د میرویس نیکه لېسې متعلم وم. استاد نومیالي د (الف لیلة و لیلة) د سرنۍ برخي داستانونه له عربي څخه و پښتو ته راترجمه کول او د طلوع افغان ورځپاڼي په پل پاڼه کښي ئې خپرول. کله چي ئې اوز ګڼې چاپ سوي وې، د طلوع افغان مدیر ورته وویل چي و ده ته د مطبوعاتو له وزارت څخه ویل سوي دي، چي دغه افسانې دي په طلوع افغان کښي نه چاپېږي. نو ځکه ئې هم د چاپ سلسله نیمګړې پاته سوه. که هغه زمان د ده مخنیوی سوئ نه وای، ده به خود ټوله (الف لیلة و لیلة) یا به ئې ښایي ډېره برخه هغه زمان لا ترجمه کړې وای، چي بسیا وخت ئې هم ورته لاره.

دا چي استاد نومیالی لکه ډېر نور افغانان له وطنه څخه پردېس سوئ ؤ، او بیا ئې وخت موندلئ ؤ، خو له بده مرغه د ژوندانه په پای کښې، ده لا یوه پلا بیا هم د الف لیلة و لیلة په ترجمه لاس پوري کړئ ؤ. خو دا چي د نامراده د ژوندانه پای ؤ، سلسله ئې تر پایه پوري نه ورسولای سوای. د بشپړولو ویاړ ئې و ځوان مستعد لیکوال ښاغلي محمدمعصوم هوتک ته ور په برخه سو. ده ئې اوز نور ټوکونه ترجمه کړي دي او څلور ټوکه ئې د ښاغلي مطیع الله روهیال په همت او مېړاني سره چاپ سوي هم دي. نور به هم خود په پسې وي.

که څه هم "زر ؤ یوه شپه" د جهان له شهکارونو څخه دئ، خو له بده‌مرغه ئې د

افغانستان په وګړو او نيګړو کښې ارزښت له هيڅ سره برابر دئ. ګوندي تر دې وروسته به افغانان د ليک او لوست او هم د لوړو زدکړو خاوندان سوي وي، څو په دوی کښې د کلاسيکو او علمي کتابونو مطالعه ډېره رواج سوې وي. زما د دغي او هم نورو ليکنو مرام هم د خلکو پوهاوی او د دوی د فهم د سويې لوړول دي. دغسي کتابونه لکه "ملي هنداره" او "زر ؤ يوه شپه" څوانان او څواناني په مطالعه روږدولای سي.

پخوانيانو ويلي دي چي وايي: "پر لوړه وخېژه ځار وکه - چي نور ئې کوي هغسي کار وکه!" ولي نورو بايسکلان، موټرسايکلان، موټران، الووتکي، توغنديان، راډيوګاني، تلويژنونه، کمپيوټران، برق، يخچالونه، بوخارياني او سوونه نور آلات او وسايل جوړ کړي دي او موږ صفر څه چي خپل دوست ؤ دښمن لا هم څله پېژندلای نه سو. دا مو د عقل کمزوري ده. عقل د علمي کتابونو په زدکړه، ويلو او ځان پوهولو سره وده مومي. نو تر هر څه دمخه بايد څوک د ليک او لوست خاوند وي، بيا ئې ډېر پياوړي علمي کتابونه لوستلي وي او د هغيو د محتوياتو و مغز ته ئې ځان رسولئ وي.

لکه په رسېدلې نړۍ کښې، زموږ مشران هم بايد خپل کشران د خوندورو کتابونو په ويلو او مطالعه کولو سره روږد کړي. حکومت بايد داسي کسان، نارينه او ښځمني، په کار وګوماري چي د کوچنيانو له پاره داسي کتابونه وليکي يا ترجمه کړي چي د کوچنيانو ئې و لوستلو ته تخنک وي. يوه ښه ځرګندويه نمونه ئې هم په خپله دغه د زر ؤ يوې شپې داستانونه دي او دغسي ډېر نور هم سته. په لوېديځو هيوادونو او ټولنو کښې لسونه کتابونه د کوچنيانو له پاره کښل سوي دي. حکومت دي داسي کسان په کار وګوماري چي هغوی د کوچنيانو له پاره هغه کتابونه په ساده ژبې سره ترجمه کړای سي.

و کوچنيانو ته بايد ځکه ډېره توجه سوې وي، او ښه سم پر لاري برابر را لوی کړل سوي وي چي دوی د سبا ځوانان دي او د مملکت او ټولني چاري به هم د دوی په لاس کښې وي. که دوی بې سره او بې ښکره لوی سوي وي، نو به مو هر کله حال داسي وي لکه دغه اوس څه د ېرش کاله چي دئ. د دوی به جسم، بدني جوړښت او رنګ د انسان وي، خو اعمال به ئې د لېوانو وي. دوی به خپل نس د کسب او مهارت په وسيله سره موړولای نه سي، خو په دروهه، غلا، رشوت او شکوءنه سره به ئې موړوي. که حکومت د ټولني اساس سم کښېږدي، و خلګو ته به په دغه هلکيني او نجلتابه کښې راز - راز مسلکونه ور زده کړي، په ټولنه کښې به و ډېرو ساتندويانو، سانتنملانو او ساتنوالانو ته اړتيا نه وي. خلګ به په خپله ټول سمونوالان وي، يا به ئې لږ تر لږه د حکومت واکوالان سمونوالان وي،

زه و استاد محمدانور نوميالي او ښاغلي محمدمعصوم هوتک ته د دغه ستر ادبي او ثقافتي اثر د پښتو کولو مبارکي وايم. که څه هم استاد نوميالی له موږ سره نور نسته، خو نوم دي ئې ښادمن ژوندی وي. و ښاغلي معصوم هوتک ته ددې کتاب د بشپړولو او د داسي ډېرو نورو کارونو او برياوو آرزومند يم او برکت ئې غواړم. زه باوري يم چي داسي نور کارونه به هم وکړای سي.

هيله ده چي پښتانه او په سرې سره کندهاريان به دغه کتاب و خپلو ځانو او لونو - زامنو ته ور وپيرودي. که ئې ټول غوند

ټوکونه په یوه پلا پیرودلای نه سوای، یو – یو یا دوه – درې ټوکه دي پیرودي. و ښځمنو او اوم خولو نجونو او هلکانو ته ئې لوستنه دوې ګټې لري. یو دا چې د خوند معلوماتي داستانونه به لولي، او بل دا چې د لوست او فهم استعداد او ملکه به ئې پیاوړې سوې وي. نو په کورنۍ کښې ئې لویان او کوچنیان ټول په لوستلو مکلف دي. علم دریاب دئ او عالم ئې اوباز دئ.

چي غــوټې پسي وهي په لاس به ورسي
چا ول دا چي په دریاب کښي ګوهر نسته
(رحمان)

که به و چا ته و دغو ته ورته یا بل راز داستان په فکر ورګرځي یا ئې بل څوک بیانوي، دوی دي ئې څني وکاږي، یا دي بل داسي کس چي هغه د لیک او لوست خاوند وي، و دې ته وهڅوي چي په ټولني کښي مروج یا متداول داستان یا لا داستانونه ئې کښلي وي. دغه یوازي داستانونه څه، بل لا کیسې، زړې بدلي، متلونه او داسي ډېر نور څه دي په خپله ښاري او کلیوالي ټولنه کښي غونډ او ثبت کړي. اوس مو هم ډېر څه بایللي دي. دا څکه چي ټولنه مو وګړې ده، ځیني به مو په خپله تباه کړي وي چي دا د کفر د زمانې دي او هغه به مهم تاریخونه یا علمي کتابونه ول، او ځیني د جهالت له اسیته څخه چي په مفاهیمو ئې نه پوهېدل، نو ئې څه ارزښت هم نه ورته لاره.

و دغه مهم اثر ته چي ښاغلي معصوم هوتک جوغېدلئ دئ، همدغسي ئې هم د چاپ چاري او کمپیوټر کارۍ ویاړ د علامه رشاد د خپرندویي ټولني د مشر ښاغلي مطیع الله روهیال په برخه سوي دي، چي داسي ډېر نور کارونه ئې هم کړي دي. او پر داسي ډېرو نورو برياوو ئې هم برکت او غښتلوالئ غواړم.

په دغه لوی کتاب کښي د ښلابښلو سویو داستانونه سته چي ځیني ئې د نجونو او هلکانو له پاره دي او هم ځیني نور ئې بیا د لویانو له پاره دي.

ز، د دغه اثر یو – یو ټوک و خوریانو او وربرزیانو ته ورکوم چي دوی ئې ولولي یا ورته ولوستل سي، په دغو سره به ئې عقل او ذهنیت وده کړې وي. لکه شهریار چي له بدو څخه په ګرځېدلئ ؤ، ګوندي کوچنیان به هم له خشنګیو او بدودیو څخه په ګرځېدلي وي، او هم به لا د سد خاوندان سوي هم وي.

که معلم د (زر ؤ یوې شپې) لنډ داستانونه د دوهم ټولګي و زده کړیانو ته په اونۍ کښي یو ساعت ولولي، په دوهم، دریم او څلرم ټولګۍ کښي ئې د یوه – یوه داستان اوز کربښي په یوه او اوز کربښي په بل زدکړي سره ولوستل سي. دا به پر غمبدلي نه وي، بل لا به ئې و لوستني ته هوسېدلي هم وي.

دغسي هم که په اونۍ کښي یو ساعت د شهنامې هغه برخه چي په پښتنو پوري اړه لري، د لسم، یوولسم او دوولسم صنفونو په زدکړیانو سره وویل سي، دوی به ئې هم په خپل تاریخ پوهولي وي او هم به ئې د فارسي ژبي او ادبیاتو زدکړه کړې وي (یو مرغ[1] دوه مرغان).

مطلب دا چي که زموږ ځوانان او ځوانانې د نورو ادبیات وایي او زده کوي ئې ښه کار دئ، خو نو خپل ئې هم باید هېر کړي نه وي. که به د نورو کسرتونه کوي لکه فوټبال او کریکیټ خپلي بازۍ او کسرتونه ئې هم باید پاللي وي، لکه خوسۍ او بوزکشي

[1] مرغ margh د مچلوغزي ډېري ته ویل کېږي.

چي په برېښانو کښي بې له اسانو څخه کېدله او لا هم به ښايي کېږي. هغه داسي چي کله به چا په زيارت کښي يو پسه يا وزګړئ قرباني کړ، د شاوخوا کلو ځوانان به هري ډلي و خپل کلي ته ختني خغلاوه او نورو کليوالو به ئې مخنيوی کاوء او هم به ئې ځني اخيستئ.

د ښو کتابونو په لوستني سره د چا علمي سويه لوړېږي، د فهم او عقل خاوند کېږي، او هم به ئې لوستنه پياوړې سوې وي. زه له نورو څخه هم داسي غوښتنه لرم څو دوی هم دغسي کار او خدمت کړئ وي، خپل کوچنيان ئې په زدکړه او لوستنه بوخت او په روږد کړي وي. څو په دغه کار سره به له بدلاريو څخه هم ګرځېدلي وي.

د (زر ؤ يوې شپې) څه باندي زرو داستانونو د وينګ وياړ و يوې ځواني ښځي ته ورکړه سوئ دئ چي وروسته شهرزاده بلله سوې ده. داسي يوه جراره او هوښياره ښځه څنګه په هغه د فتور په زمانه کښي پيدا کېدله، دا که به څه هم د ناپېژندلي اديب ذهني خلقت وه، لا بيا هم دغه ذهنيت و موړ ته داسي پيغام راکوي چي ښځمني په خپله آزادي کښي تر ډېرو نارينه وو لا اړولې ده. دغه زموږ په زمانو کښي ښځي د يو شمېر هيوادونو شاهاني، صدراعظماني او وزيراني سوي دي. دوی يو ځای او بل ځای سياسي نوم ؤ نښان ګټلئ دئ، خو لا تر اوسه پوري ئې په ادب او صنعت کښي د نوبيل Nobel جائزه وړې نه ده. ای کشفيات او اختراعات ئې کړي نه دي، مګر څوک د (زر ؤ يوې شپې) کريډيټ (اعتبار) ورکړي. څکه چي اصلي ليکوال ئې پېژندل سوئ نه دئ، خو استاد محمدانور نوميالی دغه پسې عبارت وړاندي کوي:

"د (زر او يوې شپې) اثر د هغه اصل پر بنا تدوين سوی دی چي "په يوه چوکاټ کي دننه داستانونه" ئې بولي. څکه يو سرګذشت چي په هغه کي دا نور ټوله نکلونه رايوځای سوي دي د چوکاټ په څېر کار ورکوي. د دغه چوکاټ دپاره د هغه شهريار پاچا نکل کار ورکوي چي ښځه [ماينه ئې] له ده سره بې وفايي کوي او دی نو بيا تر هغه وروسته هره شپه ځان ته نوې ښځه راودوي او کله چي لومړۍ شپه له هغې سره تېره کړي نو سهار ته ئې وژني. خو په دې لړ کي چي په ژبه پوه زيرکه شهرزاده ورته راواده سوه نو هغې د واده په لومړۍ شپه يو په زړه پوري نکل ورته راوموښلاوه چي بيان ئې د سپېډو داغ تر مهاله پوري اوږد سو او خورا جذابي برخي ته ورسېدی. پاچا ته چي نکل ډېره مزه ورکړه نو ئې د دې نوي ناوي د وژني چاره راتلونکي شپې ته وځنډوله څو دا نکل تر آخره پوري واوري. په دې ډول يو زر او يوه شپه په قصو او نکلو باندي [سره پر] تېره سوه او د دې نکلو د مجموعې په پای کي وايي چي نور نو پاچا له خپلې ظالمانه فيصلې څخه د تل دپاره لاس واخيستی. دا نو شهرزاده وه چي د نکلو په هنر ئې هم د ځان وژنه او هم ئې د ښار د نورو ځوانو نجونو ژوند له شاهانه وژلو څخه وژغوری او د پاچا نازولې ملکه ځني جوړه سوه". (نوميالی: ۱۳۹۲هـ(۲۰۱۳ع): ۱۹ – ۲۰).

داستانونه د واقعي پېښو مجرد واهي کړء سوئ بيان وي، چي نه ئې تاريخ ښوول سوئ وي او نه ئې ټولنه ښووله سوې وي. ټاکلی ځای او زمانه ئې هم ښوول سوې نه وي. څکه چي له يوې ټولني څخه و بلي ټولني ته تللي وي او هم له يوې زمانې څخه و بلي زمانې ته. څه ځني کم سوي او څه پر

زيات سوي وي.

د هر کلونه دمخه، کله چي زه په مکتب کي وم. استاد نوميالي د (زر ؤ يوې شپې) داستانونه ترجمه کول او د طلوع افغان په پل پاڼه کښې چاپېدل خو په وروسته کي د مطبوعاتو مدير ورته وويل چي و ده ته له وزارت (کابل) څخه ويل سوي دي چي دغه خرافات دي نور نه چاپېږي. څکه ئې نو د چاپ او ښايي هم د ترجمې سلسله بنده سوه. پېښه داند ېښنې وړ ده.

زه د دغو داستانونو په آغاز، له هغه څخه چي ترمخه مي د نوميالي صاحب له مقدمې څخه رااخيستي دي، بل راز پوهېدلئ يم. ترمخه مي گومان کاوه چي ما به خپل فهم د ده له ليکنو څخه اخستئ وي، خو اوس ئې وړاندنۍ رااخيستی عبارت بل راز دئ. نو زه اوس نه پوهېږم چي زما فهم ئې څنگه، چيري له څه څخه اخيستل سوئ دئ. زه به ئې خپل فهم هم د آغاز يا پيل په اړوند د لوستونکو له پاره څکه وکاږم چي و ما ته سم او صحيح تره ايسيږي. لوستونکي دي خپل قضاوت په خپله پر کوي.

وايي چي بادشاه يوه خورا ښايسته او جذابه ماينه يا شهو لرله چي درباريان ئې ورته لرمکي يا لا پر سره ايکي ول، او بادشاه هم په دې پوهېدئ. دمخه تر دې چي بادشاه چيري د جنگ يا ننگ په سفر تللئ وي، ده خپل شاهي صنعت کار وروغوښتی، چي د ده و شهو ته ئې داسي تاويتک ورجوړ کړئ وي، چي پر بکرنده چاره پکښې نصب سوې وي. ورهنکار هم دغه کار وکړ. نو کله چي بادشاه په سفر روانېدئ، هغه تاويتک Chastity belt ئې د دې پر سپوخسي باندي تر ملا وروتاړه او دغه تاويتک يوازي

دوې لښتکياني لرلې چي شهو به تر هغې ميچپاړي کولې. نور ئې د تاويتک و ملاترونې ته کولپ وراچولئ ؤ.

بادشاه چي له سفره څخه ورگرځېدلئ او د خپلي شهو د تاويتک ازموينه ئې وکړه، هغه دوې لښتکياني، څله کش کړل سوي وې. دی وپوهېدئ چي له شهو سره ئې چا عشق کړئ دئ، او دی ئې بايد هرومرو پيدا کړي چي دغه کار چا کړئ دئ. نو ئې خپل درباريان وروغوښتل، دوی ئې يوه ليکه ودرول او امر ئې ورته وکړ چي پرتوگونه مو وښويوئ او لمني مو پورته کئ! ده فکر کاوه چي يوه يا دوو به عشق ورسره کړئ وي. اوس چي ئې کتل، هغي د تاويتک چړې د ټولو بلاگيان ورپرې کړي ول، خو يوازي د قاضي القضات بلاگی ئې ورغوڅ کړئ نه ؤ. بادشاه ئې هم سمدلاسه په ستايني پيل وکړ چي ته مخلص، وفادار، د عفت او شرافت خاوند يې چي له جنسي نارواوو څخه دي ځان خوندي کړئ دئ. اوس ته حکم صادر که چي و دغو نورو زانيانو او بدکارانو ته چي د خپل بادشاه د شهو پر عفت باندي ئې تجاوز کړئ دئ بايد څنگه جزا ورکړه سي؟ ستا حکم به پر ټولو باندي سمدلاسه عملي او تطبيق کړل سي.

قاضي القضات ورته وويل: بمه، پمه، ووپه، بام، وم بوم، ييم، ميپ، وم پي يوپ بوی... [۲]

بادشاه ورته وويل: دا دي څه وويل، زه په هيڅ نه وپوهېدم سم ورغږېږه!

هغو نورو درباريانو ورته وويل: صاحب! د ده ئې ژبه ورپرې کړې ده. څکه نو بادشاه دوی ټول ووژل او هم ئې خپله

---

[۲] بايد ټول توري په شونډو سره وويل سي.

ښایسته ماینه ووژله. تر دغه وروسته چې به ئې هره ماینه وکړه، یوه شپه ئې ورسره تېروله، او هغه ئې هم سهار وژله څو له دې سره ئې د هغې بلې ماینې غوندي خیانت کړئ نه وي.

دغه د ودولو او وژلو سلسله په پرله پسې توګه تر هغو پوري جاري وه څو چې شهرزاده پر پېښه سوله. شهرزادې پر بادشاه باندې خورا هوښیارانه چم – چل وچلاوې چې زه د استاد نومیالي او ښاغلي معصوم هوتک د (زر ؤ یوې شپې) په ترجمو کښې پر پېښې سوئ نه یم. (په لومړي ټوک کښې بیان سوئ دئ، چې له ما سره ترمخه نه ؤ)، خو ښاغلي روهیال د دغه عبارت تر لوستلو وروسته راوسپارې.

زه به لومړی د استاد نومیالي د هري قصې پای بیت وآغلو او ښاغلو لوستونکو ته د دې له پاره وړاندي کم څو دوی مي یوې سهوي او یوه خارق العاده استعداد ته خیر کړي وي.

سهوه داسې ده چې د ځینو داستانونو په پای بیتونو کښې خطاب و ټولون یا جمعیت ته دئ. خو داستاني سلسله داسې ښووي چې یوازې دا او دی، شهرزاده له نانۍ خور سره او شهریار، سره یو ځای دي، نور څوک ورسره نه ول. د شهرزادې داستانونه خو و نانۍ خور ته بیانېدل.

بله ئې دا چې شهرزاده بې له کم څه مناسبته، دلیل یا پلمې څخه و شهریار ته داستان ویل پیل کوي. زه به ئې مناسبت د پایځوړ تر سلسلوي بیتونو وروسته بیان کم.

استاد نومیالي د هري شپې د نکل نظم په نظم سره ترجمه کړئ دئ چې وروسته ښاغلي معصوم هوتک هم دغه کار کړئ دئ. نکل ئې د شپې د پای په دغو پسې بیتونو سره نغښتئ دئ:

د لومړنیو شپږو شپو داستانونه پای بیتونه نه لري.

**اوومه شپه:**

د سهار سپېدو نکل راوست تر بسېدو
... (دوهم نیم بیتی ئې نسته).
(اتمه شپه هم بیتونه نه لري)

**نهمه شپه:**

چې سپېدو روڼا خپره کړه په آسمان کې
معـطلي راغــــله د نکل په بیان کې

**لسمه شپه:**

تر نولسمي شپې پوري پای بیتونه نه لري.

**شلمه شپه:**

چې روڼا ئې په آسمان کښې ولیدله
شهرزادې خـوله لــه نکله ونیوله

**یوویشتمه شپه:**

چې د نکل بهیر راغلئ تر دې ځایه
شـهرزادې سپېدې ولیدې له ورایه
توره شپه ئې ورتسلیم کړله روڼا ته
پاته برخه ئې ســبا ته کــړله پاته

**دوه ویشتمه شپه:**

دا شپه هم د شهرزادې تر سپېدو ورسېده
نوره برخه د قصې ئې تر سبا وځـــنډېده
درویشتمه شپه پای بیت نه لري.

**څلېرویشتمه شپه:**

د کړوپک مړي ته کښېنسته هک پک
چې سپېدو مخ راښــکاره کی پر فلک

**پنځویشتمه شپه:**

د سهار سپېدې ښکاره سوې شپه ئې ووهله شاته
شهرزادې قصه بس کړه نکل پاته سو سبا ته

**شپږویشتمه شپه:**

په آسمان کې د سهار سپینه روڼا سوه
سلسله د نکل پاته تر ســبا ســوه

**اووه ویشتمه شپه:**

شهرزادي ســـتر ګي پورته واړولې
د سهار سپیني سپېدې ئې ولیدلې

پر دې ځای ســـو نکل پاته ناتمامه
اووه ویشتمه شپه هم تېره سوه آرامه

**اته ویشتمه شپه:**

شهرزادي چي سپېدو ته وکتله
پر همدې ځای ئې قصه ودروله

**نهویشتمه شپه:**

شپه روڼا سوه د سپېدو په ماتېدو
شهرزادي کړه قصه پر بســـېدو

**دېرشمه شپه:**

سپېدې وچاودې خپره سوله روڼا
نکل پاته سو نیمګړی تر سبا

**یو دېرشمه شپه:**

په آسمان کښي چي د سپین سهار روڼا وځلېدله
شـــهرزادي تر سبا پوري قصه وځــــنډوله
بیا ئې ګورو چي څنګه پر کوم ښــکر ودرېدله
وروستنی دریم فرد سکته لري، چي
ښایي داسي به وُ:
بیا بې ګورو چي دا مځکه پر کوم ښکر ودرېدله
یا لا داسي:
بیا بې ګورو چي دا څنګه پر کوم ښکر ودرېدله

**دودېرشمه شپه:**

چي د هسک کناره سپینه په سپېدو سوه
د دې شپې قصه ئې هم پر بســـېدو سوه

**دري دېرشمه [درودېرشمه] شپه:**

پاس چي ستر ګي شهرزادي و آسمان ته واړولې
سپیني ښبي [نخښبي] د سپېدو ئې په ختیځ کي ولیدلې
دڅونډون دهلو ځلو [کوښښونو] بله شپه ئې هم روڼا سوه
نوره برخه د قصې ئې تو له پاته تر ســـبا سوه

**څلور دېرشمه شپه:**

دغه ځای ته چي قصه ورسېدله
د ســـبا ســـهار روڼا وځلېدله

**پنځه دېرشمه شپه:**

چي روڼا د سبايي سوله خپره
تر آخره ئې قصه نه ســـوه پوره

**شپږ دېرشمه شپه:**

روڼايي د سپین سبا چي پر ختیځ وځلېدله
شهرزادي پر دې ځـای باندي قصه ودروله

**اووه دېرشمه شپه:**

په ختیځ کي د سپېدو روڼا خپره سوه
قصه پاته تر ســـبا پوري بیده ســـوه

**اته دېرشمه شپه:**

شهرزادي چي پاس وکتل هوا ته
شپه وه تېره نکل پاته سو سبا ته

**نهه دېرشمه شپه:**

نو پر دې مهال ښکاره سوه د سهار سپینه روڼا
شهرزادي دلته بس کړه په خندا خپله وینا

**څلوېښتمه شپه:**

شپه روڼا سوه د قصې په بیانو
چر ګان راغلل د سهار پر آذانو
[شپه سوه روڼه د قصې په بیانو]

**یوڅلوېښتمه شپه:**

شهرزادي پاس آسمان ته وکتله
د سپېدو سپینه روڼا ئې ولیدله
شپه سوه تېره قصه پاته ناتمامه
د سبا په هیله ټولو [دواړو] وخندله

**دوڅلوېښتمه شپه:**

د ختیځ کـــناره روڼه په سپېدو سوه
په لیدلـــو ئې قصه په [پر] بســـېدو سوه
شـــهرزادي وکتله وې خـــــندله
د شپې توره دربله په [دربیله پر] تېرېدو سوه

**دري [درو] څلوېښتمه شپه:**

په آسمان کي د سهار سپینه روڼا سوه
دا شپه هم په خـــیر تېره تر سبا سوه

**څلور څلوېښتمه شپه:**

تیاره ولاړه د ګهیځ روڼا خپره سوه
قصه نوره تر سبا پوري بیده ســـوه

یا داسي:
قصه نوره تر سبا [هم ناپوره] سوه
یا لا داسي:
قصه پاته تر سبا [هم ناپوره] سوه
**پنځه ثلوېښتمه شپه:**
شـــــهرزادي تر ســر پورته وکـــتله
ســپینه وړانګه د سپـېدو ئي ولـیدله
ټوله [دواړه] ډوب وه د قصې په بیانو کي
شـــپه ســبا سوه د هغې په اورېدو کي
یا داسي:
[باچا ډوب ؤ د قصې په بیانو کي]
**شپږ ثلوېښتمه شپه:**
دوی لا دغه مرکه ســره کــوله
چي روڼا د سپین سهار وځلېدله
**اووه ثلوېښتمه شپه:**
ټولو [دواړو] وکتل د سپین سهار روڼا ته
ناتمامه نــکل پاته ســو ســـبا ته
**اته ثلوېښتمه شپه:**
توره شپه ورسېده تر اختتامه
قصه پاته سوه سبا ته ناتمامه
**نهه ثلوېښتمه شپه:**
د سهار سپینه روڼا پر خپرېدو سوه
له سپېدو سره قصه پر بسېدو سوه
**پنځوسمه شپه:**
خو دې ځای ته چي قصه ورسېدله
د ســــهار سپینه روڼا وځلـېدله
**یو پنځوسمه شپه:**
نکل پاته سو چي توره شپه ســبا سوه
د آسمان پر مخ ښکاره سپینه روڼا سوه
**دوه پنځوسمه شپه:**
دا مهال شپه رسېدلې وه سهار ته
نکل پاته سو د بلي شپې و وار ته
**درو پنځوسمه شپه:**
په آسمان کي شپه تسلیم سوه و روڼا ته
نکل پاته ســو له ننه و ســبا تــه

**څلور پنځوسمه شپه:**
چي قصه ورسېدله تر دې ځایه
د سهار روڼا ښکاره سوله له ورایه
**پنځه پنځوسمه شپه:**
په ختیځ کي راښکاره ســوه د ګهیځ سپینه روڼا
شهرزادي قصه بس کړه شـهریار ته تر ســبا
[شهرزادي قصه بس کړه نانۍ خور ته تر سبا]
[قصه و نانۍ خور ته وه، نه و شهریار ته].
**شپږ پنځوسمه شپه:**
چي سهار سترګه وهله و روڼا ته
په لیدو ئي نکل پاته سو ســبا ته
**اووه پنځوسمه شپه:**
شپه د وخته رسېدلې وه سپېدو ته
دوی لا منګ وه د قصې و اورېدو ته
[دی لا منګ ؤ ...]
**اته پنځوسمه شپه:**
دا شپه هــم ورســـېدله خاتمې ته
قصه پاته نیمکله سوه بلي شپې ته
**نهه پنځوسمه شپه:**
دوی [دۍ] لا دا قــصه په مینه اورېدله
چي روڼا د ســپین ســـهار وځلېدله
**شپېتمه شپه:**
د سپېدو روڼا څرګنده سوه له ورایه
دا شپه هم په نکل تېره سوه تر پایه
**یوشپېتمه شپه:**
دوی لا دغه مـــرکه ســره کوله
چي روڼا د سپین سهار راوختله
**دوشپېتمه شپه:**
دا شپه هم لنډه پر دغه ځای سهار سوه
ټوله [دواړه] پاته تر سبا په انتظار سوه
**دروشپېتمه شپه:**
ټـوله تللي هک اریان وه د دې قصې ته
[دی ؤ تللی هک اریان دغې قصې ته]
له سپېدو سره سوه پاته بلې شپې ته




**ځلورشپېتمه شپه:**

په آسمان کي د سهار روڼا ښکاره سوه
له ليدو سره ئې بس دغه قصــه ســوه

**پنځه شپېتمه شپه:**

تر دې ځايه چي قصه رارســېده
د سپېدو ستر ګه له ورايه ځلېده

**شپږشپېتمه شپه:**

پلوشه چي د سپېدو د راختو سوه
په ليدو ئې دا قصه پر بسېدو سوه

**اووه شپېتمه شپه:**

د سپېدو له راختو سره روڼا ســوه
پاته ټول په انتظار کي تر سبا سوه
يا داسي:
[دی او دا په انتظار کي د سبا سوه]

**اته شپېتمه شپه:**

دې قصې ته په حيرت کي شهريار سو
دا شپه هم په خير تېره سوه سهار سو

**نهه شپېتمه شپه:**

دا شپه هم ورسېدله تر ســـهاره
په ليدو ئې نکل قطع سو له ورايه

**اويايمه شپه:**

چي دې ځای ته ئې د نکل رســـېده وه
په آسمان کي د سپېدو ښکاره کېده وه

**يواويايمه شپه:**

چي آسمان ته ستر ګي ټولو [دواړو] واړولي
د ســـهار سپيني ســـپېدې ئې ولـــيدلي

**دواويايمه شپه:**

چي خبره تر دې ځايه رسېدله
د ســهار سپينه روڼا راوخــتله

**درواويايمه شپه:**

تر چولو سوه د سهار ستر ګه ښکاره
د قصې ويل ســـول پاته نيمکاره

**ځلوراويايمه شپه:**

پرآسمان ننبه [نخښه] ښکاره سوه دسپېدو دچاودېدلو
وخت پر مخکه باندې راغی د قصې د دربېدلو

**پنځه اويايمه شپه:**

دآسمان توره بڼه پر سپينېدو سوه
له سپېدو سره قصه پر درېدو ســوه

**شپږاويايمه شپه:**

چي بيان د نکل راغی تر دې ځايه
د سهار سپېدې ختلي وې له ورايه

**اووه اويايمه شپه:**

چي دې ځای ته ئې د نکل رسېده سوه
شـپه وه تېره تر ســـبا ئې بسېده سوه

**اته اويايمه شپه:**

لا هـــــوس و د قصې و اورېدو ته
شپه د وخته رسېدلې وه سپېدو ته

**نهه اويايمه شپه:**

دوی لا دلته دا قصې ســـره کولې
[دې لا دلته دا قصې ورته کـــولې]
چي سپېدې د سپين سبا راوختلې

**اتيايمه شپه:**

چي د سپين سهار روڼا پر راختو سوه
تر سبا مر که خــــتمه د قصــو سوه

**يو اتيايمه شپه:**

دا مهال د سهار ستوری ۇ ختلی
چي لا غوږ ټولو قـــصو ته و نيولی
[ده لا غوږ دغي قصې ته ۇ نيولئ]

**دواتيايمه شپه:**

دآسمان كنارې سپيني په روڼا سوې
د قصې خــــبري پاته تر ســـبا سوې

**درواتيايمه شپه:**

دا شپه هم په خيريت سره ســـهار سوه
واړه [دواړه] نکل ته سبا په انتظار سوه

**ځلوراتيايمه شپه:**

له سپېدو سره قصه سوه ناتمامه
نكل پاته سو سبا ته تر مـــاښامه

**پنځه اتيايمه شپه:**

شهرزادي و سپېدو ته وخندله
دغه شپه ئې هم په نکل و ګټله

**شپږاتیایمه شپه:**

دا شپه هم ورسېدله تر سهاره
نکل بس سو د سبا تر انتظاره

**اووه اتیایمه شپه:**

لا وختي د سهار ستورئ ؤ ختلئ
د قصې په شـــوق له یاده ؤ وتلئ

**اته اتیایمه شپه:**

په آسمان کي ټولو [دواړو] وکتل روښا ته
پر همدې ځای نکل پاته سو ســــبا ته

**نهه اتیایمه شپه:**

په قصه کي چي جګړه شروع کېدله
په آسمان کي سپینه ورځ وغوړېدله

**نیوي یمه شپه:**

هلــته دغسي د وير قـصه خپره وه
دلته شپه تر سر اووښتي په قصه وه

**یونیوي یمه شپه:**

په قصه کي لا جــګړه پر تودېدو ســــوه
په آسمان کي توره شپه پر سپینېدو سوه

**دونیوي یمه شپه:**

په آسمان کي د سپېدو سپــــینه روښا سوه
دا شپه هم په دې قصه باندي [سره] سبا سوه

**درونیوي یمه شپه:**

تر دې ځایه چي د نکل رســــېده وه
په آسمان کي د سهار ښکاره کېده وه

**څلور نیوي یمه شپه:**

قصه نوره لا هم پاته وه تر ډېره
چي روښا د سبایي سوه راسر بېره

**پنځه نیوي یمه شپه:**

په هوس د بډایني خوبښ خوشحاله مسېدله
د ســــــهار له راخـــــتو سره قصه ودر بدله

**شپږنیوي یمه شپه:**

پاس په هسک کي سپېدې وچاودې روښا سوه
د قصې پاته، په برخــــــه د ســــبا سوه

**اووه نیوي یمه شپه:**

سهاري روښا خپره سوله د هسک په کـناروکي
کرۍ شپه سوه ټوله تېره د جنګر بز په بیانو کي

**اته نیوي یمه شپه:**

پر آسمان روښا ښکاره سوه د سهار
[د]واړه پاته سوه سبا ته انتظار

**نهه نیوي یمه شپه:**

لا په شوق وه د دې نکل اورېدو ته
خو سپېدو ورساوه و بسېدو ته

**سلمه شپه:**

قصه پاته سوه خو شپه سوله تمامه
و ســـــبا ته انتظار سوه تر مـــابنامه

**سل و یوومه شپه:**

چمګیري لا په پیري کي پر مخ تلله
خـــو روښا د سپین سهار [illegible]

**سل و دوهمه شپه:**

تر آخــــره لا قصه وه ډېره پاتـــــه
نوره بس سوه چي ئې وکتل روښا ته

**سل و دریمه شپه:**

د سپېدو ځرک چي په هسک کي راعیان سو
باقي پاته و ســــبا ته نور بیان ســــــو

**سل و څلرمه شپه:**

دجګړې خوږې خبري دشرکان په مرګ ترخې سوې
شهرزادې قصه بس کړه دسپېدو سپیني شېبې سوې

**یو سل ؤ پنځمه شپه:**

لا هوس و د قصې و اورېدو ته
خو سپېدو ور سوله بسېدو ته

**یو سل ؤ شپږمه شپه:**

ټول [دوی] تیار سول د قصې و اورېدو ته
خو د شپې تیاره تسلیم ســوله سپېدو ته

**یو سل ؤ اوومه شپه:**

شــــــهرزادې چي پاس وکتل روښا ته
نکل دلته ځای پر ځای سو ځني پاته

**یو سل ؤ اتمه شپه:**

د ښادۍ کاروان روان و په مېرو [دښــتو] کي
نو قصه ئې دلته تم [بس] سوه په سپېدو کي

**یو سل ؤ نهمه شپه:**

شپه تمامه سوه قصه لا ناتمامه
بیا سبا ته انتظار سوه تر ماښامه
**یو سل ؤ لسمه شپه:**
چي قصه بلي قصې ته رسېدله
په آسمان کي روڼایي وځلېدله
**یو سل ؤ یوولسمه شپه:**

پر گودر چي د دوی شــــخړه تودېدله
پاس په هسک کي سپینه ورځ وځلېدله
**یو سل ؤ دوولسمه شپه:**
شپه په خیر ســوله تېره د قصې له برکته
برخورداره تر سبا سوه شهرزاده له مهلته
**یو سل ؤ دیرلسمه شپه:**
د سهار روڼا راپورته پر آسمان وځلـېدله
شهرزادي پر همدغه ځای قصه ودروله
**یو سل ؤ څوارلسمه شپه:**
لا قصه وه ښه پر مخ باندي روانه په مــزو کي
سپین سهار پورته راوخوت دآسمان په کنارو کي
**یو سل ؤ پنځلسمه شپه:**
هسکه ستر گه د سبا وځلېدله
قصه نوره تر سبا وخـــنډېدله

## پایلوستئ:

استاد محمدانور نومیالي داسي یو د ستاینې وړ کار کړئ دئ چي د هري شپې د داستان پایځوړ بیت ئې په راز – راز شعري الفاظو سره ادا کړئ دئ. خو په عربي کښي به ښایي هم هغه یو بیت ؤ، چي د هر داستان په پای کښي به ورزیاتېدئ. څنگه چي ما ئې عربي جوله jawla لیدلې نه ده، زه ئې د ښاغلي معصوم هوتک له ترجمې څخه داسي قیاس کوم چي د هري شپې د داستان په بسولو کښي هم هغه بیت ور کنجوغه کېدئ. خو د استاد نومیالي د داستان د شپني پربکړي پایځوړ بیت یا لا کله بیتونه هره پلا بېلابېل دي، خو مفهوم ئې ډېر کله، نه هر کله، هم هغه وي. بل دا چي الفاظ ئې هم ډېر کله هغه وي، خو ترکیب ئې بېلابېل وي. د ښاغلي معصوم هوتک د هري شپې د داستان پایځوړ بیت هم هغه وي چي خود په اصالت کښي به هم دغسي وي.

د پایځوړ بیت په ترجمه کښي دوې سهوي هم لیدلي کېږي چي څرگندوني ئې داسي دي:

شهرزادي چي پاس وکتل هوا ته
شپه وه تېره نکل پاته سو سبا ته
(نومیالی)
د سهار شمال راوالوتی روڼا ســـوه
د شهرزادي کیسه پاته تر سبا سوه
(هوتک)

یو خو دغه داستانونه داسي لنډ دي چي ډېر نیان ئې په یوه ساعت کښي و پای ته رسېږي. په کری، شپه کښي ئې ښایي لس تر شل داستانونو پوري بیان کړل سي. د پښېې څرنگوالئ به ئې زه تر پایځوړ بیتونو وروسته وښووم.

بله نادوده ئې دا ده چي وایي نکل یا کیسه و سبا ته پاته سوه. سبا خو ورځ ده او له همدغه اسیته څخه داستان غوځ کړه سوئ ؤ. دا چي عربي لغت به ئې څه ؤ، زه پرې نه پوهېږم. خو سمه به ئې دا وای چي د (سبا) پر ځای باندي (بېگا) راوړه سوئ وای. د برایي کیسه نن شپه و پای ته رسېدله، د نن شپې قصه بیگا و پای ته رسېدله:

شهرزادي چي پاس وکتل هوا ته
شپه وه تېره نکل پاته سو بېگا ته

د سهار شـــمال راوالوتی روڼا سوه
د شهرزادي کیسه پاته تر بیگا سوه
ما په سر نی، برخه کښي ژمنه وکړه چي

زه به د يوه داستان پر نيمايي باندي د پاته کېدلو عامل دا نه بولم چي شپه پر سهار سوې وه، يا سپېدې پر چاودلي وې او نو څکه داستان نيمګړئ و بلي شپې ته پاته سوئ ؤ، لکه څنګه چي په ګڼ شمېر پای بيتونو کښې هم داسي ښووله سوې ده چي ما له همدغه اسيته څخه را اخيستي دي. خو زما فهم او معلومات مي بېل دي. زه داسي فکر کوم چي زما دغه فهم او معلومات مي د استاد نوميالي صاحب له هغو ليکنو څخه دي چي دء څه شپېته کاله ترمخه په طلوع افغان کښې چاپ او خپاره کړي ول. دا چي د دغې سلسلې لومړی ټوک مي وروسته ليدلی او لوستلئ دئ چي آغاز ئې و دغه ته ورته دئ او بل دا چي په دغو اوسنيو خپرونو کښې شهرزاده و شهريار ته تش داسي وايي چي دا يو داستان ورته بيانوي او دمخه تر دې چي داستان و پای ته رسېدلئ وي ورباندي سپېدوداغ سي او داستان بشپړ نه سي. زما د فهم بيان ئې په داسي توګه دئ:

يو پاچا ؤ، ناست پر دکانچه ؤ، خوراک ئې الوچه ؤ. دء داسي خوی لارء (چي عامل ئې د ليکني په سر کښې بيان سوئ دئ) چي دء به هره ورځ نوې ناوې پېغله ماينه کوله. هغه به ئې د شپې تر ورسره تېرولو وروسته وژله. څو بيا ئې خيانت ورسره کړئ نه وي. په دغه سلسله کښې يوه خورا جراره، هوښياره او له داستانونو څخه ډکه پېغله پر واوښتله يا پر پېښه سوه چي په "زر ؤ يوه شپه" کښې شهرزاده بلله سوې ده. څو نوم ئې له شهريار سره مترادف سوی وي. دا چي و بادشاه ته ور وادء کړه سوه او د شپې د بيدېدو وخت ور ورسېدئ، دا و پالنګ ته نه ورختله او بادشاه ته ئې وويله چي دا يوه اسکېرلې کوچنۍ غوښتنه لري. که بادشاه خدای مهربان کړي او د دې دغه ساده هيله ورتر سره کړي. هغه دا چي زء يوه کوچنۍ نانۍ خور لرم. و دې ته خوب نه ورځي څو ما يو داستان ورته ويلئ نه وي. دغه داستان و دې ته خوب ورولي. که داستان ورته ويل سوئ نه وي، دا تر سهاره پوري ويښه پاته کېږي. نو اوس که خدای بادشاه مهربان کړي چي زما نانۍ خور راته راولي، او زء يو داستان ورته ووايم څو دا بيده سوې وي.

بادشاه ورته وويل: هو، ښه دئ، دا خو څه ګرانه غوښتنه نه ده. دغه کار دي سمدلاسه وسي.

و شهرزادي ته خور وروستله سوه او دې داستان ورته پيل کړ. داستان چي و حساس پاسني ټکي ته رسېدلئ ؤ، نجلۍ بيده سوه او داستان نيمګړئ پاته سو. بادشاه شهرزاده د شپې په پای کښې نه ووژله چي غوښتل ئې داستان ئې تر پايه اورېدلئ وي چي په وروسته کښې به څه څنګه پېښېږي.

په پسې شپه شهرزادي د برايي نيمګړی داستان و خور ته بشپړ کړ، خو نانۍ خور لا ويښه وه. څکه ئې نو بل داستان ورته وموښلاوء. کله چي دغه داستان هم و پاسني هيجاني ټکي ته رسېدونئ ؤ، نانۍ خور ئې بيده سوه او دغه دوهم داستان هم تر پايه بيان نه کړل سو، او نيمګړی پاته سو. بادشاه چي بيا غوښتل دغه داستان ئې تر پايه اورېدلئ وي، شهرزاده ئې دغه ګهيز هم نه ووژله. په دغه توګه ئې د برايي داستان په نن شپه و پای ته رساوء او د نن شپې موښلولئ داستان ئې په بيګانۍ شپه کي بشپړاوه او ورپسې ئې بل داستان پيل کاوء. دغسي ئې شپې – شپې تېري کړې او له بادشاه څخه هغه خوی پاته سو چي خپلي د

یوې شپې ناویاني به ئې وژلې.

د دغې یادوني زنۍ ټکۍ دا دئ چي داستان تر روکه سهاره پوري نه رسېدئ. نانۍ خور څه نیم ساعت یا لا ساعت وروسته بیدېدله، مانا د شپې په سر کښې به دا بیده سوه، او داستان به نیمګړئ پاته سو.

مانا د شپې تېرېدني یا سپېدو داغ داستان نه نیمګړئ کاوء، بل لا د نانۍ خور بیدېدني به داستان نیمګړی کړ.

زء ټینګ په دې باور یم چي دغه سهوه په اصالت کښې نه د استاد نومیالي او نه هم د ښاغلي هوتک ده، بل لا به یا د نورو ژبو په تراجمو کښې پېښه سوې وي، یا به لا په خپله د بېلابېلو زمانو د عربانو په استنساخ کښې پېښه سوې وي. د دغې سهوي منشاء او مبداء د بېلابېلو نسخو له مطالعې څخه موندل کېدلای سي. دا به نو د ځان ته بېله مطالعه وي چي باید د ماسټرۍ یا ډاکټرۍ ډیسرټېشن ورباندي کښل سوئ وي. ښایي کله به ئې تحقیق هم د چا له خوا څخه وکړل سي.

د "زر ؤ یوه شپه" نامراده نوم ورکي لیکوال یو بې ساري شکهار اثر کښلئ دئ چي په جهان کښې به ئې ساریٔ نه وي. دء د خپلو غونډو کړو داستانونو د بیان یا کښښې له پاره یو محرک، موخه، او موندونکئ هدف خلق کړي دي چي استاد نومیالي په مجموع کښې چوکاټ بللئ دئ. په هند، اروپا او جهان کښې ډېر داستانونه غونډ کړل سوي او کښل سوي دي. خو زء ګومان نه کوم چي چا دي هغه په دغسي هڅاند محرک سره، سره پېیلي وي لکه د زر ؤ یوې شپې لیکوال چي دغه کار کړئ دئ، او هم دغه محرکانه تسلسل ئې و دغه اثر ته خوند او شهرت وربخښلئ دئ. په اصالت کښې دغه په داستان سره د داستانونو سره پېیل دي چي و زر ؤ یوه شپه داستانونو ته ئې جذابیت وربخښلئ دئ. دغه داسي مثال لري لکه مرغلري او غمیان چي چیري پاشلي وي. خو چا هسي غونډ کړي ساتلي او څوک ئې بیا داسي سره وپېیي چي په هغه کښې داسي تخیل وي چي نور خوند ځني اخیستلای سي او هم یو راز روحیه او الهام ځني موندلای سي. دغه نازکوالئ، د زر ؤ یوه شپه د داستانونو په سره پېینه کښې نغښتئ دئ چي هم درد لري هم دوا، هم اړتیا او مجبوریت وي او هم ئې بالآخره په نهایت کښې نتیجه تلافي وي. د زر ؤ یوې شپې داستانونه په اصالت کښې منفي او تراجیک آغاز لري. خو انجام ئې خوښانه مثبت دئ، او تر منځ ئې هوسانه هېښتیاوي دي.

دغه د زر ؤ یوې شپې داستانونه به د ژمي په شپنیو باڼدارونو کښې د نکلچیانو له خوا څخه داسي بیانېدل، لکه زموږ د ملي هنداري داستانونه یا نکلونه چي به بیانېدل، او ما هم د ژمي په شپو کښې له پخو نکلچیانو څخه اورېدلي دي. نو نوم ورکئ لیکوال په کلو، کلاوو، او ښارونو کښې، د ښادروان محمدګل نوري غونډي پسي ګرځېدلئ او دغه ګڼ شمېر داستانونه ئې غونډ کړي دي او ښایي په خپله به هم د باڼدارونو سرغنه مالګه ؤ چي دغه داستانونه به ئې په خوند او جذابیت سره بیانول. که به نه ګانه داسي پېښه نه وه، نو یوازنۍ بله لار او وسیله به ئې داسي وه چي دی به د وزلي او واک خاوند شخصیت ؤ. دء به خپل یو شمېر استازي و درو – څلورو خواوو ته استولي ول څو په ښارونو، کلو، او کلاوو کښې ئې و دء ته داستانونه ورغونډ کړي وي. دء بیا دغه غونډ کړي داستانونه همدغسي سره پېیلي

او لیکلي دي. دواړي ئې ممکنه حل لاري دي. خو دا باید ووایم چي دا ټول داستانونه د یوه سړي د حافظې کار نه دئ بل لا له ډېرو کسانو څخه ټول سوي دي.

## د زر ؤ یوې شپې د داستانونو ژبنۍ جوله:

د ژبنۍ اداینې په اړوند به ء د استاد نومیالي صاحب څرگندونه د زر ؤ یوې شپې د لیک دود او سبک په اړوند در کم چي داسي ئې کښلي دي:

"د دې حاضري ترجمې منثوره برخه ما کوښښ کړی دئ چي تر ډېره ځایه د کندهارۍ لهجې سره سم زموږ د سیمي د نکلچیانو د ادا او وینا پر ډول یا سبک باندي تهیه سي. ترجمه ئې آزاده وبولئ خو نه په هغه نوې ایرانۍ سویه چي په خپلو تازه تجارتي نسخو کي ئې شرابونه په شربتونو اړولي دي. د نکلو د کرکټرونو کلاسیک نومونه ئې ورالیش کړي وي او د انساني میني رشتیانۍ نندارې ئې د ملایي ذهنیت تر بویناکه برستن لاندي پټي کړي وي. هغه نظمونه یا بیتونه چي د عربي نسخې له اصله سره سم په دې پښتو سوي متن کي په مخه راځي ځیني ئې کټ مټ د عربي بیتو ټیک ترجمې دي، خو ځیني ئې تش د موضوع په حساب جزیي اشتراک ورسره لري، اما په طرز او ادا کي د پوره آزادي ترجمې په خیال تیار سوي دي". (پیللوستئ ۱۳۹۲ (۱): ۲۶).

لکه و ما ته، ښایي و نورو لوستونکو ته به هم داسي پوښتنه ورپیدا سوې وي یا لا ورپیدا سي چي د "زر ؤ یوه شپه" ټول داستانونه په عربي ژبه کښل سوي دي، نو ئې د سرغنه وو نومونه ولي په پارسي ژبه دي، داسي چي بادشاه ئې شهریار، شهو ئې شهرزاده، او د دې خور بیا دنیازاده بلل سوي دي؟ که سړی ووایي چي دغه کار د حسد، بغض او تعصب له اسیته څخه سوئ دئ، نو ولي ئې دغه درې نومونه اړول؟ خو ټول داستانونه به ئې و خپلي ژبې ته هغه زمان لا وراړولي وای. لکه نن چي د شهریار، شهرزادي، او دنیازادي اصلي عربي نومونه و چا ته ورمعلوم نه دي، له ټول الف لیلة ولیلة څخه به هم هزار و یک شب جوړ سوئ وای. و بادشاهانو ته خو داسي کار ډېر آسانه وي.

دا چي د شهریار او شهرزادي نومونه هم لغوي اړوندتیا سره لري، چي باید نه ئې درلودای، نو دغه کار هم د سم تعقل له مخي څخه سوئ نه دئ. ولي چي شهرزاده د شاهي کورنۍ ښځه نه وه. د نامه د لغوي مفهوم له مخي څخه باید شهرزاده د شهریار لور وای.

بل تحریف ئې دا دئ چي داستانونه د شپې تر پایه پوري رسوي چي اساساً او اصلاً به د شپې په سر یا څه وروسته و بسوالي ته رسېدلای، نه تر سپېدو چاوده پوري. دغه سهوه هم د وروستنیانو ده. خو په باندارونو کښې به خود تر سپېدو دغه پوري ویل کېدل.

د نورو لهجوي اداوو په اړوند استاد نومیالي داسي یادوءنه کړې ده:

"په دې وړاندې جونگ [ټوک] کي سره له هغه چي ما کوښښ کړئ دئ د یو شمېر سیمو لهجوي کلمات، وراشې، ویناوي دلته هلته په کار واچوم، خو بیا هم له دې څخه نه سم ناگاره کېدای چي خوښ ناخوښ د لوېدیځي یا نرمي لهجې ونډه به ئې هرومرو زیاته وي". (همغه ۲۷).

استاد نومیالي چي د بلې لهجې یو لغت

چیري کارولئ وي، په څنګ کښې به ئې هرومرو د کندهارۍ لهجې لغت هم ورسره کښېلئ وي. چیري چې داسي پېښه سوې نه ده، او د بلې لهجې لغت ېېله معادله څخه ئې کښل سوئ وي، هغه لغت د دء نه دئ، بل لا ورکښې ایستل سوئ دئ. دی له دغه کاره څخه اندېښمن هم ۇ چې داسي ئې کښلي دي:

"له بده مرغه یو زمان په کابل کي د ځینو ناپوهو دوستانو او هوښیارو غلیمانو له خوا څخه دا هڅه کېده چې یوه لهجه په بلې باندي [سره] نفي کړي. دا کار زموږ د ژبې ملي رشد له زوره څخه واچاوه او د پښتو د پراخي ودي مخه ئې ونیوله". (همغه)

رشتیا هم، اوس دغه کار په خپله د دء په لیکنه کښې سوئ دئ چې زه به ئې لږ وروسته ځیني ځرګندوني د نمونې په توګه دروړاندي کم[۲].

که د یوې لهجې لغات د بلې لهجې په لغاتو سره نفي کړل سي، مانا به ئې دا وي چې له ژبې سره خیانت کیږي یا سوئ دئ. ځکه چې په دغه کار سره ژبه خوارېږي. یوه ژبه چې د یوې اداینې له پاره هر څونده ډېر لغات ولري هغه ژبه بډایه ژبه وي. اوس په پښتو کښې داسي هڅه شعوري او غیرشعوري جریان لري چې زه به ئې په لنډه توګه دوې ځرګندوني درکم، لکه کښته په تیټ سره ورک کول او کوښښ په هلوځلو سره محوه کول چې تر منځ ئې د ماناوو توپیر هم سته. داسي نور لغاتونه هم سته چې د نست کولو هڅه ئې کېږي.

دا چې ښاغلي معصوم هوتک و دغه ستر خدمت ته هم ملا تړلې ده چې هم موقع ورته مساعده ده، هم وخت ورته لري او هم ئې منابع په لاس کښې دي. نو هر کله چې ئې خپل کار بشپړ کړئ وي، بیا به نو ګوندي د استاد نومیالي درې ژباړلي ټوکونه هم په غور سره داسي ولوستلای سي، څو ورکښې ایستل سوي تحریفات ئې ځني پوجي کړي او اصلاح کړي وي. دی منحرف لغات او ترکیبونه د اصلي متن او ترجمو له مخي پېژندلای او اصلاح کولای سي. د ځرګندوني په توګه زه په "خوړلنچي" او "چوپړي" نه پوهېږم. ګومان کوم چې دا یو به د "زیري کوونکي" او بل به "خادم، هردلی، چپراسي" وي خو باوري نه یم. دغه توجیه د اخیستځونو له مخي څخه یا رد یا تصدیق کېدلای سي. نور تحریفات چې د لهجوي توپیر له مخي څخه وي هغه پېژندل کېدای او اصلاح کېدای سي چې زه به ئې لاندي اوز ځرګندوني د نمونې په توګه دروړاندي کم.

بل د (کم) فاعلي حال او (کړم) مفعولي ماضي تر منځ توپیر دئ چې له بده مرغه زموږ ټولو لیکوالانو ئې مراعات ساتلئ نه دئ. زه به ئې لاندي اوز ځرګندوني درکم.

س: له سره څخه کرښه

پ: له پایه څخه کرښه

---

[۲] کابل خو څه، دغه اوس په سرې سره په خپله په کندهار کښې دغه د ژبې او لغاتو اړولو کار په خورا درب ۇ درازء سره روان دئ. په کندهار کښې سمونوالان خو هیڅ، داسي کسان هم نسته چې د دغه یرغل مخنیوی ئې کړئ وي.
ښادروان غني ګردېزي د لوی کندهار تنظیمه رئیس، څه باندي شپېته کاله ترمخ وویل: "کندهاریانو! تاسي سرې نه لرئ"، رشتیا هم، شپېته کاله وروسته ئې هم نه لري. بیري لري، او لنګوټې ئې هم تړلي دي خو د سمون حرکت او برکت ئې نسته.

## ژبني کړه وړه:

د "زر او يوه شپه" د سرسري لوستلو په ترڅ کښې پر ځينو داسو تحريفاتو باندي پېښ سوم چي لومړی شپيانجن وم او وروسته باوري سوم چي دا خودبښکه د استاد نوميالي وي. د دې په ترجمه کي کم چا لاس وهنه کړې ده. زه دغه منحرف لغوي شکلونه لاندي کاږم. لوستونکي دي هم په خپله قضاوت پر وکړي:

| وصلي مفعولي | مخ | | کرښه | اصلي (ښايېدونئ) فاعلي | توک |
|---|---|---|---|---|---|
| دا زېری وکړم | ۴۰ | س | ۳ | دا زېری وکم | ۲ |
| ته به څه وکړې | ۳۱۵ | پ | ۱۳ | ته به څه وکې | ۲ |
| يوه خبره تا ته وکړم | ۳۲۰ | س | ۴ | ... تا ته وکم | ۲ |
| خيراتونه ورپسي وکړم | ۳۷۱ | پ | ۸-۹ | ... ورپسي وکم | ۳ |
| چي هغه ته نکلونه وکړم | ۳۷۵ | س | ۱ | ... نکلونه وکم | ۳ |
| ورته راحاضر کړم | ۲۱۸ | پ | ۸ | ... ورحاضر کم | ٦ |
| سم نيمی به ئې تا ته درکړم | ۲۷۱ | پ | ۳ | ... و تا ته درکم | ٦ |
| درې خايه به ئې کړم | ۲۷۱ | پ | ۲ | ... به ئې کم | ٦ |
| زه خپل بيان هم درته وکړم | | | | ... بيان هم درته وکم | ٦ |
| درې دېرشمه شپه | ۲۱۵ | پ | ۳ | درودېرشمه شپه | ۲ |
| درې څلوېښتمه شپه | ۴۰٦ | پ | ۴ | دروڅلوېښتمه شپه | ۲ |
| نه څلوېښتمه شپه | ۲۸ | س | ۱ | نهه څلوېښتمه شپه | ۳ |
| درې پنځوسمه شپه | ۸۸ | س | ۳ | دروپنځوسمه شپه | ۳ |
| شپږ پنځوسمه شپه | ۱۱٦ | پ | ۲ | شپوږ پنځوسمه شپه | ۳ |
| تر جوړ تازه وروسته | ۳۳ | س | ۱۱ | تر روغبړ وروسته | |
| نو خورا زيات وډار ېده | ۴۰ | پ | ۱۰ | ... وبېر ېدئ | |
| د ځارويو ګلې | ۴۵ | پ | ۱ | د بوده وو ګلې، بوده ګاتو ګلې | |
| ده کډه هم درلوده | ۴٦ | س | ۱ | ده ميانه هم لرله | |
| خپل هوساينځي ته راورساوه | ۴٦ | پ | ۱۲ | ځان ټاټوبي ته ورساوه | |
| په زور راجګ کړي | ۴٦ | پ | ۱ | په زور کښېنوي | |
| خپله کډه پر ګرانه وه | ۵۰ | پ | ۳ | خپله ماينه پر ګرانه وه | |
| ور کلک وتاړه | ۵۲ | پ | ۵ | ور ټينګ وتاړه | |
| د دې کلکه اراده ئې وانه ړوله | ۵۳ | س | ٦ | ټينګه اراده ئې نه واړوله | |
| وزير سر ور ته ټيټ کړ | ۵۳ | پ | ۲ | وزير سر ورته کښته کړ | |

ځينو نورو سهوو هم خورا ډېر عموميت موندلئ دئ، چي نمونوي ځرګندوني ئې داسي دي:

| وصلي | مخ | | کرښه | اصلي (ښائېدونئ) | توک |
|---|---|---|---|---|---|
| يو بل ته ئې سره وويل | ۲۷۴ | س | ۴ | يو ؤ بل ته ... | ٦ |

| وصلي مفعولي | مخ | کرښه | اصلي (ښايېدونۍ) فاعلي | ټوک |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| زه مجبوره يم (مؤنث) | ٢٧٤ پ | ۵ | زه مجبور يم (مذکر) | ٦ |
| باندي مشهوره وو | ٢٨١ پ | ٧ | سره مشهور ؤ | ٦ |
| وزير ته مخ راوګرځاوه | ٢٧١ پ | ١٠ | ... مخ وروګرځاوء | ٣ |
| قبر ته رادمخه سو | ٢٧١ پ | ٢-١ | قبر ته وردمخه سو | ٣ |
| چاره په دې باندي کيږي | ٣٧٤ پ | ۵-۴ | ... په دې سره کيږي | ٣ |
| سمندر ته ځانونه وغورځول | ٢٧٢ س | ١١ | ... ځانونه واچول | ٣ |
| زه نه ارتينه لرم | ٣٧٧ س | ٩ | زه نه ماينه (ماندينه) لرم | ٣ |
| زه هيڅکله مينځه راونه نيسم | ٣٧٨ س | ١٠ | ... مينځه نه رانيسم | ٣ |
| په جګ ږغ | ٢٧١ پ | ٨ | په لوړ ږغ | ٣ |
| يې (د مخاطب فعل) | ډېر ځايونه | | ئې (د غائب ضمير) | ٣-٢ |
| ملاټيټي يا شاټوغی | ۴٨ س | ٩ | کړوپک ٢۴٩ س ٨ | ٣ |
| مينځکی | ۵٠ پ | ۴ | مينځي، مينځياني | ٢ |
| کلک په وواهه | ۵٣ س | ٧ | سخت په وواهه | ٢ |
| کلک سوک ورته ونيوی | ۵۴ س | ١١-١٠ | ټينګ سوک، سخت سوک | ٢ |
| غټ څټک، څټک | ۵٣ س | ۵ | سوټک (سوټکی) | ٢ |
| يهودي خوشي کړه | ۵٨ پ | ٩ | يهودي ايله که، پرېږده، آزاد که | ٢ |
| يو ډېر لوی تجار وو | ٩۴ س | ٧ | يو ډېر لوی تاجر ؤ | ٢ |
| دوی دواړه خوندي دي | ١٣٣ س | ٢ | دوی دواړي خوندي دي | ٢ |
| په دې ښار کي ميشته سوم | ١٣۴ س | ٩-٨ | په دې ښار کي استوګن (ځايي) سوم | ٢ |
| په تروه ټنده ئې وويله | ١٣۴ س | ١٠ | په تريو (ترينګلي) تندي ئې وويل | ٢ |
| خوشراباتي خياط | ١٣۴ س | ٨ | خو شرابي؟ خياط | ٢ |
| د مېلمنو په ټول کي | ١٣۵ س | ٧ | د مېلمنو په ټل کي | ٢ |
| زموږ له ټوله ووزي | ١٣۵ پ | ٧ | زموږ له ټله ووزي | ٢ |
| ستاسي په ټول کي | ١٣۵ پ | ١ | ستاسي په ټل کي | ٢ |
| موسکی غوندي ايسېدله | ۴۴٠ س | ۵ | مسېدوني غوندي ايسېدله | ٢ |
| دا د څه شي ټرانګه يا رښکی ده | ۴٠٣ س | ٩ | ... تراډه يا رښکی ده | ٣ |
| د ټوکره همدغه ټرانګه وه | ۴٠٣ پ | ٩ | ... همدغه تراډه وه | ٣ |
| بهر | ١١۴ پ | ٧ | دباندي | ٢ |
| جومات | ١١۵ پ | ٧ | مسجد | ٢ |
| دروازه مي تر شا کلکه وتړله | ١١٩ پ | ٢-١ | ... تر شا ټينګه وتړله | ٢ |
| د لوبو تر کولو | ١٢٠ س | ٩ | د بازيو تر کولو | ٢ |
| موسکا | ١٢١ س | ١ | مسېدنه | ٢ |
| نجلکی اتنيزه بولله | ١٢١ س | ١١ | نجلی داتڼ بدله ويله | ٢ |
| دوی دواړه راغلې | ١٢٣ س | ٣ | دوی دواړي (ښځي) راغلې | ٢ |

| وصلي مفعولي | مخ | کرښه | اصلي (ښايېدونۍ) فاعلي | ټوک |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| سره اننګي يې ګلابي دي | ۱۲۳ س | ۱۱ | سرء باړخوګان ئې ګلابي دي | ۲ |
| له مخه څخه ټکرى واړاوه | ۱۲۳ س | ۴ | ... پوړ نۍ واړاوء | ۲ |
| جګ ږغ [جګ – ټيټ] | ۱۲۴ س | ۷ | لوړ ږغ [لوړ – کښته] | ۲ |
| دا سمدستي جګه سوه | ۱۲۴ پ | ۱۱ | دا سمدلاسه ولاړه سوه | ۲ |

**درېيم ټوک**

| وصلي مفعولي | مخ | کرښه | اصلي (ښايېدونۍ) فاعلي |
| --- | --- | --- | --- |
| د دغه رواج پاته شونی دود | ۱۴ پای | ۹ | ... پاته کېدونی ... پاته سوئ |
| په انعام باندي وغټاوه | ۱۵ سرنی | ۳ | په انعام سره ... |
| نښه، نښو ۲۵ (...) | ۲۰ سرنی | ۷ | نخښه، نخښو |
| نښي ۲۱ (۱۱)، نښه | ۱۹۰ پای | ۲ | نخښي، نخښه |
| د شپو د شمېر حساب ببخي غورځولی دئ | ۲۳ سر | ۸ | ...ايستلئ دئ، پرې ايښئ دئ |
| نږدې [نګدې] | ۳۰۹ سر | ۹ | نژدې |
| ميرې | ۳۸۹ سر | ۷ | دښتونه |
| تم سوه | ۳۸۹ سر | ۸ | بس کړه |
| له ټنګ ټکور سره | ۳۸۸ پای | ۱ | له ډمامو سره |
| چوپړی ... وښکلاوه | ۱۸٦ سر | ۱۰–۱۱ | خادم ... مچ کړ |
| رانږدې سو | ۱۸۵ پای | ۱۲ | ور نژدې سو |
| نږدې | ۱۸٦ سر | ۸ | نژدې |
| خوږلنچي | ۱۸۵–۱۸۷ | اوز | زېری کوونکی؟ |
| چوپړي | ۱۸۵–۱۸۷ | اوز | خادم؟ هردلی، چپړاسي |

"د لنګون ټر مهال پاچا يوه چوپړي ته دنده ورکړه څو ده ته دا حال راورسوي چي هغې نر وزېږاوه که ښځه؟" (دوهم – ۴۲۴ پای ۱۰–۱۱)

[... يوه خادم ته ... وروړسوي چي هغې هلک وزېږاوه او که نجلۍ؟]

"... چي د نوي زوکړي ماشوم د نر او ښځي خبر ده ته راوړي" (پ ۹–۸)

[د کوچني هلک او نجلۍ خبر و ده ته وروړي]. د زوی یا لور د زېږېدني زېرئ پر دء باندي وکي.

| وصلي مفعولي | مخ | کرښه | اصلي (ښايېدونۍ) فاعلي |
| --- | --- | --- | --- |
| دواړه کلکي سره ونښتلې | ۸ پای | ۱۱ | دواړي ټينګي سره وموښتلې |
| ځان خوشي کړې | ۸ پای | ۳ | ځان آزاد کړې، ايله کړې |
| دوی دواړي خوشي کړې | ۹ سر | ۲–۳ | دوی دواړي ايله کړې |
| يو او بل | ۹ پای | ۸ | يوه او بله (ښځي دي) |
| تا راوپرزوم | ۹ پای | ۳ | تا غوځاره کم |
| په رښتيا وينا وکړه | ۱۰ پای | ۲ | رشتياووايه |
| زښتيا وينه ګټمنه ده | ۱۰ پای | ۲ | رشتيا ويل درته ګټور دي |
| وېرېدای | ۱۱ پای | ۷ | ببرېدای |
| په پلو او سپرو باندي | ۱۱ پای | ٦ | په پلو او سپرو سره (په –سره) |
| راکوز سه | ۱۱ پای | ۴ | راکښته سه |

| وصلي مفعولي | مخ | کرښه | اصلي (ښايېدونئ) فاعلي |
|---|---|---|---|
| ډار ېږم | ۱۲ سر | ۳ | بېر ېږم |
| حمله واچوي | ۱۲ سر | ۷ | حمله ووهي، حمله وکي |
| تازه راچپه کړم | ۱۲ پای | ۹ | تازه غوځار کړم |
| ته راوپرزولې | ۱۲ پای | ۸ | ته راغوځار کړې |
| راپرزوني | ۱۲ پای | ۱ | راغوځاروني |
| ترويالې راپوري وخه | ۱۳ سر | ۱۰ | تر والې راپوريوزه |
| درپوري وخم | ۱۳ سر | ۱۱ | درپوريوزم |
| راچپه کړم | ۱۴ پای | ۷ | راغوځار کړم |
| د نېزو په څوکو باندي | ۱۶ سر | ۷ | د نېزو په څوکو سره |
| مينځکياني، مينځکۍ | ۱۷ سر | ۶–۸ | مينځياني، مينځه |
| بوځئ | ۱۷ سر | ۱۰ | بوزئ |
| کلاگاني او مانۍ گاني | ۱۸ سر | ۱۱ | کلاوي او مانياني، مانۍ |
| په ويښو سترگو باندي وليدل | ۱۹ پای | ۱ | په ويښو سترگو سره وليدل |
| خوب نه ورتی | ۲۷۰ پای | ۶ | خوب نه ورتلئ |
| اجازه راکړه (ماضي) | ۲۷۲ پای | ۹ | اجازه راکه (حال) |
| ډوډزتي | ۳۵۹ پای | ۳ | ډوډزي |
| تړانگه | ۴۰۲ پ | ۴۰۳،۹ | تراړه |

ما چي دغه اوز څرگندوني درکړې، دغه "موټ نمونه د خروار ده". همدغه بيا او بيا تکرار سوي دي او هم ډېري نوري سته چي د ټولو ځني را ايستنه به هم ډېر وخت او هم ډېر ځای نيولئ وي. که به څه هم ځينو کسانو څه زدکړه او اخستنه ځني کړې وي او په توپير به ئې پوهېدلي وي. بل دا چي دغه اړوني د استاد نوميالي نه دي. بايد دغه او هم نوري د کتاب په بل چاپ کښي هرومرو اصلاح کړل سوي وي. که نه گانه دغه اصلاحات نه کړل سي، بل کله به نور څوک داسي وايي چي دغه (منحرف) لغات خو استاد نوميالي کښلي دي او هم به استناد په کوي.

له ښاغلي مطيع الله روهيال څخه ډېره مننه چي و ما ته ئې د زر ؤ يوې شپې داستاني ټوکونه را استولي دي او زه ئې د بېکارۍ پر مهال په دغه بېگار اخته کړم. بېکاري مي ځکه ده چي نااهلانو، خائنانو له خپلو کتابونو څخه محروم کړئ يم. اوس يوه او بل ته زارۍ کوم چي ځيني کتابونه راپيدا کړي. قيمت ئې زه په خوښۍ او منني سره ورکوم.

***

## زر او يوه شپه

د زر او يوې شپې لومړي درې ټوکه مرحوم استاد نوميالي او پاته اووه ټوکه ښاغلي استاد هوتک پښتو ته ترجمه کړي دي. علاقه مندان کولای سي (لس سره ټوکه) د کندهار د ارگ بازار له ټولو دوکاندارانو څخه تر لاسه کړي.

# ابن حِبان

## (د خراسان شیخ)

لیکوال: مولوي محمد عبدالحی مبروض



**لومړۍ خبري:**

د نړۍ په ګوټ ګوټ کي ډول ډول د نامه خاوندان تېر سوي دي. له دې خلکو ځخه ځینو د خپل کمال، لوړ همت، قوي عزم، زغم، سخا، دلاورۍ او پوهي په وجه په ډېره مېړانه سره ژوند کړی. ځینو ئې بادشاهۍ او امپراتورۍ جوړي کړي او تر خپل واک لاندي ئې ډېري سیمي راوستلي دي او ډېری ئې د غلامۍ له حلقو ځخه آزاد کړیدي او له ډېرو مظلومانو سره ئې مرسته کړېده. زور او بربریت ته ئې درس ورکړی، د ډېرو توپانونو مخه ئې نیولې ده. د ظلم، بې عدالتۍ، بې انصافۍ، جبر او وحشت ریښې ئې کښېلي دي.

د علم او پوهي په خوا کي هم وتلي او نوموتي ځبرې لرو، دې خلکو د خپل علم او پوهي په زور د اولسونو پر زړونو پاچهي کړېده او تر اوسه ئې نومونه ژوندي پاته دي. د پوهي او علم ساحه ډېره پراخه ده، په دې برخه کي تاریخ، ادب، حدیث، فقه، تفسیر، نحو، معاني، بیان، منطق، فلسفه، ریاضي، جغرافیه، فزیک، کېمیا، ساینس، طب، نجوم، هندسه، عروض، فلکیات او ډېر نور علوم د یادوني وړ دي. د دغو ټولو فنونو نومیالیو د ناپوهۍ تغر ټول کړی دئ او د پوهي په روڼا ئې ټولني ته پرمختګ ورکړی دئ.

افغانستان په تاریخي لحاظ د آسیاء د براعظم زړه بلل سوی دئ. په دې وچه کي هم ډول ډول ځبرو ژوند کړی دئ، د علم او پوهي په ساحه کي د هغوی کارنامې د ستورو غوندي ځلېږي. د دې سیمي ډېری علماء د نړۍ په سطحه د نامه خاوندان دي. د هغوی آثار اوس هم د نړۍ په لویو پوهنتونونو او مدارسو کي تدرسېږي.

زه به پخپل نوبت د دې سیمي د ځینو نومیالیو او پوهانو پر ژوند، آثارو او افعالو لږ و ډېر بحث درسره شریکوم. په دې لړ کي

لومړی سړی چې تاسي درنو ته ئې درپېژنم، (ابن حِبان بُستي) دئ. زه به د دغو مدارکو او اسنادو په رڼا کي چي په لاس کي ئې لرم، د ابن حبان د زوکړي، زده کړي، تدریس، سفرونو، دندو، تصنیفاتو او د ژوند پر نورو اړخونو خبري وکړم.

***

**زوکړه او نسب:**

د ابن حبان د زېږېدو دقیقه نېټه نه ده معلومه، خو که د علماوو اقوالو ته ځیر سو دا راته څرګندېږي چي د (۲۷۰ – ۲۸۰ ق) کلونو په حدودو کي د بُست په علاقه کي زېږېدلی دئ.

د ابن حِبان د نسب په سلسله کي د علماوو تر منځ اختلاف موجود دئ. یاقوت حموي د محمد بن احمد بن محمد البخاري (مشهور په غنجار) په حواله ئې د نسب سلسله داسي ښیي:

محمد د حِبان زوی د معاذ لمسی د معبد کړوسی، د سعید کودی د شهید پردی دئ. د حموي سره نور علماء هم توافق لري، چي وروسته ئې د نسب سلسله داسي بیانوي:

ابو حاتم، محمد بن حِبان بن احمد بن حبان بن معاذ بن معبد بن شهید بن هُدیه بن مُرة بن سعد بن یزید ابن مرة بن زید بن عبدالله بن دارم بن حنظلة بن مالک بن زید مناة بن تمیم بن مَر بن اُد بن طابخة ابن الیاس بن مضر. د کشف الظنون مؤلف حاجي خلیفه د ابن حبان یادونه په خپل کتاب کي لس ځایه کړېده، دوه ځایه ئې د محمد بن جعفر نوم هم یاد کړی دئ. لومړی: تفسیر ابن حبان – ابی عبدالله محمد بن محمد بن جعفر البستي المعروف بابی الشیخ المتوفی: ۳۵۴هـ (کشف الظنون: ۱/ ۴۳۸).

دوهم: وصف الاتباع و بیان الابتداع، لابن حبان البستي و هو ابو عبدالله محمد بن جعفر المعروف بابی الشیخ المتوفی: ۳۵۳هـ و هو من کتب الاحادیث (کشف الظنون: ۲/ ۲۰۱۳).

نور اته ځایه: (۱/ ۲۷۷، ۱/ ۴۶۳، ۱/ ۵۲۲، ۲/ ۱۰۷۵، ۲/ ۱۰۸۷، ۲/ ۱۰۹۶، ۲/ ۱۴۰۰ او ۲/ ۱۴۰۷) په دغو اتو ځایو کي ئې د محمد بن حِبان په نامه سره یاد کړی دئ.

کوم کَسان چي د کشف الظنون په پورتنیو دوو حوالو استناد کوي، دغه استناد ئې کمزوری دئ، ځکه موږ چي د ابن حبان تصنیفونه ګورو د دغو دوو کتابونو یادونه نه ده پکښې سوې، آن تر دې چي حاجي خلیفه چي ئې د محمد بن جعفر په نامه یادوي په حاشیه کي د تحریف حکم پر سوی دئ او نور هر ځای چي د ابن حبان یادونه سوې ده، هلته د محمد بن حبان په نامه یاد سوی دئ. لاندنیو کتابو ته دي مراجعه وسي: (سیر اعلام النبلاء: ۱۲/ ۲۴۶، البدایة والنهایة: ۱۱/ ۲۷۶، معجم المؤلفین: ۹/ ۱۷۳، میزان الاعتدال: ۶/ ۹۸، لسان المیزان: ۵/ ۱۱۹، تاریخ اسلام، د ذهبي: ۲۶/ ۷۳، لغت نامه دهداء: ۱۰/ ۴۶، اللباب: ۱/ ۲۷۳، نجوم الزاهر: ۳/ ۳۴۲، الوافی: ۲/ ۳۱۷، الکامل فی التاریخ: ۸/ ۱۸۶، تذکرة الحفاظ: ۳/ ۱۲۵، الاکمال ابن ماکولا ۲/ ۳۱۶، السراج المنیر فی القاب المحدثین: ۱۱۹ مخ، انباء رواة علی انباء النحاة: ۳/ ۱۲۲، معجم البلدان: ۱/ ۴۱۴ او خپله کشف الظنون).

که پورتني مراجع وکتل سي نو دا به په ډاګه سي چي محمد بن جعفر نامی د بست بل عالم دئ نه ابن حبان.

ابن حبان باید د (ح) په کسره (زېر) سره وویل سي، ځکه ابن ماکولا په خپل کتاب کي درې کسان ذکر کړي دي: حِبان، حَبان او

حُبان، دا هر یو بېل تاریخ او د بېلابېلو سیمو اوسېدونکي دي، خو د خراسان شیخ ئې (حِبان) یاد کړی دئ: (وګ: الاکمال ابن ماکولا: ۳۱٦/۲).

**بُست:**

هغه علاقه چې د خراسان شیخ پکښې زوکړی دئ او ده ته ورته نور علماء او پوهان هم لري بُست نومېږي. نوموړې علاقه په اوسني هلمند پوري اړه لري. ارغنداو چې په هلمند ګډېږي په ګډون ځای کې ئې د هلمند شرق او د ارغنداو شمال ته بُست واقع دئ. په پخوا کې بست د خراسان، بلوچستان او هندوستان له منځه د لویو لارو مرکز وو چې په تجارتي او نظامي لحاظ ئې ډېر لوړ حیثیت درلود. نوموړی ښار د شپږمې مسیحي پېړۍ په شاوخوا کې ئې پوره نوم لاره، او وروسته بیا د عربانو د یرغلونو له امله د مسلمانانو مهم ښار سو او د کابل شاهانو په مقابل کې ئې پوره مقاومت کاوه.

د غزنوي پاچهانو تر وخته پوري بست خپل پخوانی شهرت د لاسه ورکړی وو، مګر د غزنویانو په وخت کې دوباره خپلې ترقۍ او تعالۍ ته ورسېدی.

بست د کندهار لوېدیځ لوري ته په ۱۲۵ کیلومتري کې د ګرشک د جنوب شرق لوري ته په ۸ کیلومتري کې پروت دئ، د لازیاتو معلوماتو له پاره لاندنیو کتابونو ته مراجعه وکئ:

(آریانا دائرة المعارف، د افغانستان جغرافیایي قاموس، د کندهار یاداښتونه، جغرافیایي یاداښتونه د مرحوم علامه رشاد بابا تالیفات، او معجم البلدان د یاقوت حموي).

**د ابن حِبان سفرونه:**

د خراسان شیخ چې د څلرمې پېړۍ یو نامتو محدث او نابغه بلل کېږي، ده هم د نورو محدثینو په شان د نړۍ ګوټ ګوټ ته سفرونه کړي دي او د ډېرو کسانو څخه ئې زده کړه تر سره کړېده. وروسته به د شیخ استادان دروپېژنو تاسي ته به معلومه سي چې ابن حبان له کومو استادانو څخه زده کړي کړي دي او هغوی د کومو کومو ځایو اوسېدونکي ول، لکه: خراسان، شام، عراق، مصر، الجزایر او داسي نور ...

**د ابن حبان آثار:**

۱. کتاب الصحاب/ ۵ برخي
۲. کتاب التابعین/ ۱۲ برخي
۳. کتاب اتباع التابعین/ ۱۷ برخي
۴. کتاب تُباع التبع/ ۲۰ برخي
۵. کتاب الفصل بین النقلة/ ۱۰ برخي
٦. کتاب علل اوهام اصحاب التواریخ/ ۱۰ برخي
۷. کتاب علل الزهري/ ۲۰ برخي
۸. کتاب علل حدیث مالک/ ۱۰ برخي
۹. کتاب علل مناقب ابی حنیفه و مثالبه/ ۱۰ برخي
۱۰. کتاب علل ما استند الیه ابو حنیفه/ ۱۰ برخي
۱۱. کتاب ما خالف الثوري شعبة/ ۳ برخي
۱۲. کتاب ما انفرد به اهل المدینة من السنن/ ۱۰ برخي
۱۳. کتاب ما انفرد به اهل مکه من السنن/ ۱۰ برخي
۱۴. کتاب غرائب الاخبار/ ۲۰ برخي
۱۵. کتاب ما عند شعبة عن قتادة و لیس عند سعید عن قتادة/ ۲ برخي
۱٦. کتاب ما اغرب الکوفیون عن البصریین/ ۱۰ برخي

۱۷. کتاب ما اغرب البصریون عن الکوفیین/ ۸ برخي
۱۸. کتاب اسامی من یعرف بالکنی/ ۳ برخي
۱۹. کتاب کنی من یعرف بالاسامی/ ۳ برخي
۲۰. کتاب الوصل والفصل/ ۱۰ برخي
۲۱. مناقب مالک بن انس/ ۲ برخي
۲۲. کتاب التمیز بین حدیث النضر الحدانی و النصر الخزار/ ۲ برخي
۲۳. کتاب الفصل بین حدیث اشعث بن مالک و اشعث بن سوار/ ۲ برخي
۲۴. کتاب الفصل بین حدیث منصور بن المعتمر و منصور بن راذان/ ۳ برخي
۲۵. کتاب الفصل بین مکحول الشامی و مکحول الازدي/ یوه برخه
۲٦. کتاب موقوف ما رفع/ ۱۰ برخي
۲۷. کتاب اداب الرجالة/ ۲ برخي
۲۸. کتاب ما اسند جنادة عن عبادة/ یوه برخه
۲۹. کتاب الفصل بین حدیث نور بن یزید و نور بن زید/ یوه برخه
۳۰. کتاب ما جعل عبدالله بن عمر عبیدالله بن عمر/ دوې برخي
۳۱. کتاب ما جعل شیبان سفیان او سفیان شیبان/ ۳ برخي
۳۲. کتاب مناقب الشافعي/ ۲ برخي
۳۳. کتاب المعجم علی المدن/ ۱۰ برخي
۳۴. کتاب المقلین من الحجازیین/ ۱۰ برخي
۳۵. کتاب المقلین من العراقیین/ ۲۰ برخي
۳٦. کتاب الابواب المتفرقه/ ۳۰ برخي
۳۷. کتاب الجمع بین الاخبار المتضادة/ ۲ برخي
۳۸. کتاب وصف المعدِل والمعدَل/ ۲ برخي
۳۹. کتاب الفصل بین حدثنا و اخبرنا/ یوه برخه
۴۰. کتاب وصف العلوم و انواعها/ ۳۰ برخي
۴۱. کتاب الفصل بین النقلة/ ۱۰ برخي
۴۲. کتاب الروضة العقلاء/ یوه برخه
۴۳. کتاب السنن فی الحدیث
۴۴. کتاب الصفة الصلاة
۴۵. کتاب الجرح والتعدیل
۴٦. کتاب طبقات الاصفهانیه
۴۷. کتاب شعب الایمان
۴۸. کتاب ما انفرد به اهل الخراسان/ یوه برخه
۴۹. کتاب تاریخ الثقات/ ۵ برخي
۵۰. کتاب قبول الاخبار
۵۱. کتاب ثواب الاعمال
۵۲. کتاب المجروحین
۵۳. کتاب وصایا الاتباع و بیان الاتباع فی الحدیث
۵۴. کتاب التقاسیم و الانواع/ ۵ برخي
۵۵. المسند الصحیح

**کتاب الهدایة الی علم السنن:**

دغه کتاب خپله ځانته بېل مشخصات لري چي یاقوت حموي ښه تفصیل واره په خپل کتاب معجم البلدان کي ذکر کړي دي:

ابن حبان بستي په نوموړي کتاب کي داسي دوه صنعته کارولي دي چي یو صنعت د حدیث او بل صنعت د فقهي دئ. لومړی حدیث راوړي او ترجمة الباب ورسره ذکروي

بیا هر هغه ځا چې په دې حدیث تفرد کړی دئ د هغه یادونه کوي، چې څوک او د کوم ځای دئ.

بیا د اسنادو په سلسله کې هر راوي د صحابه وو څخه نیولې آن تر خپله شیخه پورې په ډېر وضاحت سره یادوي، لکه: زوکړه، قوم، نسب، فضیلت، علمي سطحه او مړینه ئې.

وروسته بیا د حدیث حکمت او کوم حکم چې څنې استخراج سوی وي د هغه یادونه کوي.

که چیرې د نوموړي حدیث په مقابل کې بل حدیث متعارض واقع سو، تر کومه سرحده چې ئې توافق او جمعیت شونی وي خو توافق ئې کوي او که ئې توافق ممکن نه وو بیا سم محمل ورته پیدا کوي، چې د هر یوه حدیث تاویل معلوم سي.

که په حدیث او فقه کې څونه مواد وي او علمي بحثونه پر کېدلای سي دا ټوله رابرسېره کوي (وګ: معجم البلدان: ۱/ ۴۱۷).

په دې لړ کې دې پوښتنو ته هم باید جواب وویل سي، چې د دغو یادو سوو کتابو کوم ئې پاته او کوم ئې ورک سوي دي. هغه څه چې ورک سوي دي مهم لامل ئې څه شی وو؟ او هغه چې پاته دي کوم ئې چاپ سوي دي او کوم ئې ناچاپه دي؟ آیا تر موږه پورې رارسېدلي دي که یا؟ د دې پوښتنو په جواب کې باید ووایم، څه ناڅه آثار ئې چاپ سوي دي، هغه چې ما لیدلي یا راسره موجود دي په لاندې ډول دي:

۱. المسند الصحیح علی التقاسیم والانواع، صحیح ابن حبان: ٦ ټوکه.
۲. کتاب الثقات: ۵ ټوکه، بېروت
۳. معرفة المجروحین و الضعفاء من المحدثین
۴. مشاهیر علماء الامصار: بیروت
۵. سیرة النبویة: بیروت
٦. روضة العقلاء و نزهة الفضلاء. دغه کتاب لومړی وار په ۱۳۲۸ق کال په قاهره کې چاپ سوی دئ. پښتو ژباړه ئې (د بریالي ژوند لارښوونکي اصول) تر نامه لاندې یوه افغاني عالم مولوي حکمت الله راغب کړې ده. او الحاج محمدعمر قانع په ۱۴۳۲ق کال چاپ کړی دئ.

له دغو پرته دا ابن حباب نور لیکلي آثار د بېلابېلو عواملو په وجه له منځه تللي دي، لکه:

الف: د وخت د واکدارانو بې پروایي.
ب: د عامه خلکو نه لېوالتیا.
ج: دا انقلابونو لړی او داسې نور ...

یاقوت حموي لیکي: ابوبکر خطیب له مسعود بن ناصر السجزي (۴۷۷مړ) څخه د ابن حبان د کتابو په هکله پوښتنه وکړه، چې: د نوموړي کتابونه ستا سره سته او یا ستاسې په سیمه کې پیدا کېږي؟

هغه وویل: ډېر لږ څه.

ابوبکر خطیب: لامل ئې څه شي دئ؟

مسعود بن ناصر: ابن حبان خپل ټول کتابونه وقف کړي ول، آن تر دې چې یو ځانګړی سرای ئې ورته وټاکه، په دې نیامت چې دې کتابتون ته عام و خاص خلک د استفادې له پاره راسي او ګټه څني واخلي، خو د وخت د واکمنانو بې غوري وه چې عیاش کسان پر سر د اقتدار راغلل، د علم او فرهنګ له مزو څخه عیاشیو محروم وګرځول، نه ئې خپله دغه ارزښتناکه شتمني وساتله او نه ئې نورو ته دا موقع ورکړه چې هغوی ئې خوندي کړي، بالآخره ئې زیاته برخه له منځه ولاړه او لږ برخه ئې پاته سوه.

په کار خو دا وه چې دغه قیمتي نسخې

باید څو څو خلي نوشته سوي او ساتل سوي وای، خو دا چي خلکو ولي دا کار و نه کړ ابوبکر خطیب وایي:

زه فکر نه کوم چي د دې کار مخنیوی دي چا کړی وي، خو یو مهم لامل لري، هغه د دې سیمي د خلکو نه علاقمندي او د پوهي کموالی وو. والله اعلم بالصواب (معجم البلدان: ۱/ ۴۱۸).

زه (مبروض) وایم، چي: د وخت د قدرت زمامداران او چارواکي که د دغو قیمتي نسخو د ساتلو په غرض خپله هڅه کړې وای داسي غمیزي به نه رامنځته کېدای.

تاریخ د دې شاهد دئ چي کله کله چارواکي د خپل قدرت د بقاء له پاره هغه څه کوي چي د قدرت واګي په ټینګښي کړي او بس. که داسي نه وي نو بیا خو افغانستان داسي تاریخي اشخاص لري، چي موږ ئې له نومونو سره هم بلد نه یو. هغه نور معلومات خو ئې پر پرده.

پورتنۍ خبري د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مبارک حدیث ژباړه او تفسیر دئ، نبي علیه السلام ویلي دي: د هر شي له پاره آفت سته، چي همدغه آفت د شي د فساد او خرابتیا لامل ګرځي، خو د اسلام د مقدس دین آفت د هغه نااهله او بد چارواکي دي، (فیض القدیر شرح جامع صغیر: ۵/ ۳۶۲).

د ابن حِبان د ځینو کتابو خطي نسخي چي لا تر اوسه چاپ سوي نه دي د نړۍ په بېلابېلو کتابخانو کي موجودي دي: مثلاً:

۱. کتاب العظمة: د دې کتاب خطي نسخه په (مکتبة عارف حکمت) کي موجوده ده.
۲. مختصر فی الحدود: خطي نسخه ئې په (مکتبة باتافیا: ۱۷۰ رقم) کي خوندي ده.
۳. تفسیر القرآن: د نوموړي کتاب خطي نسخه په (مکتبة جامعة استنبول، رقم ۱۹۱۰) او په (المکتبة المحمودیه بالمدینة، رقم ۱۵) کي محفوظ ده.
۴. حدیث الاقران: خطي نسخه ئې په (المکتبة الظاهریه رقم ۵۳/ ۱) کي ساتلې ده.

یاقوت حموي د امام تاج الاسلام له خولې نقل کوي: ما ته د ابن حبان څو کتابونه په متصل اسنادو رارسېدلي دي، لکه:

۱/ التقاسم والانواع، ۲/ الهدایة الی علی السنن: دوه ټوکه، ۳/ کتاب الجرح والتعدیل، ۴/ کتاب الثقات، ۵/ کتاب شعب الایمان، ۶/ کتاب صفة الصلاة (معجم البلدان: ۱/ ۴۱۸).

استاد عبدالرؤف بېنوا په خپل تالیف (د افغانستان نومیالي ۱/ ۸۶) کي د ابن حبان د تالیفاتو په هکله وایي: نوموړي ډېر تصانیف درلودل، چي مشهوره ئې دا دي:

۱. کتاب التقاسیم والانواع: د حدیثو هغه مجموعه ده چي علامه ابن حجر ورباندي تعلیقات لیکلي او علي بن بلبان فارسي (۷۳۳ مړ) هغه تنقیح کړی دئ او د برټیش په موزیم کي په (۱۵۷۰) نمبر قید دئ.
۲. کتاب الثقات: دا هم په حدیثو کي دئ چي ابن حجر الهیتمي هغه اصلاح کړی او خطي نسخه ئې په قاهره کي د (الخدیویه) د کتابخانې د فهرست د لومړي ټوک په (۲۳۰) ګڼه کي قید ده.
۳. کتاب مشاهیر علماء الامصار: د دې کتاب خطي نسخه په لیبسک کي سته او د Die Islam hdes

Vollers په ۶۸۸ ګڼه کې قید ده.

۴. کتاب روضة العقلاء و نزهة الفضلاء:
دا کتاب په ۱۳۲۸هـ کال په قاهره کې چاپ سوی دئ او خطي نسخه ئې په هامبورګ کې د بروکلمان Vers په ۹۶ ګڼه کې قید ده.

د مرحوم استاد بېنوا په پورتني یادښت کې، ځیني نیمګړتیاوي تر سترګو کېږي، لکه:

الف: د علي بن بلبان فارسي د وفات نېټه د لاندنیو مراجعو:

معجم المؤلفین لرضاء کحاله: ۷/ ۴۸، سیر اعلام النبلا للذهبی: ۱۷/ ۵۴۴، بغیة الوعاء للسیوطی: ۲/ ۱۷۴، تاریخ الاسلام للذهبی: ۵۳/ ۳۱۶، جواهر المضیة فی طبقات الحنیفه: ۲۳۱مخ، کشف الظنون: ۲/ ۱۰۰۳، الدرر الکامنة لابن حجر: ۳/ ۳۵، النجوم الزاهرة: ۹/ ۳۲۱ او فواید بهیة لعبدالحی لکهنوي ۱۱۸ مخ په حواله ۷۳۹هـ ق ده، خو مرحوم بېنوا صاحب ۷۳۳هـ لیکلې ده.

ب: مرحوم بېنوا صاحب د (کتاب الثقات) په هکله داسي وایي: دا هم په حدیثو کي دئ...

زما (مبروض) سره همدغه کتاب شتون لري، چي د (دارالکتب العلمیة بیروت – لبنان) له خوا په ۱۴۱۹هـ = ۱۹۹۸م کال چاپ سوی دئ.

نوموړی کتاب پنځه ټوکه دئ، او پر څو برخو وېشل سوی دئ:

اوله برخه: نبوي سیرت. دوهمه برخه: د خلفاء راشدینو تاریخ، دریمه برخه: د امویانو او عباسیانو لنډ تاریخ، څلرمه برخه: د هغو صحابه وو او صحابیاتو رضوان الله علیهم اجمعین په اړه ده چي له رسو الله صلی الله علیه وسلم څخه ئې روایات کړي دي، د الفباء په ترتیب، پنځمه برخه: د هغو تابعینو او تابعاتو یادونه کوي کوم چي له صحابه وو څخه ئې روایات نقل کړي دي، شپږمه برخه: د هغو اتباع التابعینو او اتباع التابعیاتو یادونه کوي کوم چي له تابعینو څخه ئې روایات رانقل کړي دي. اوومه برخه: د هغو کسانو یادونه کوي کوم چي له اتباع التابعینو څخه ئې روایات رانقل کړي دي، دا ټول د البفاء په ترتیب دي.

نوموړی کتاب د حدیثو د فن سره تړاو لري، خو خپله کتاب د رجالو په فن پوري اړه لري.

ج: مرحوم بېنوا صاحب د (کتاب التقاسیم الانواع) په هکله لیکي، چي: علي بن بلبان فارسي هغه تنقیح کړی دئ (وګ: د افغانستان نومیالي: ۸۶/۱).

تنقیح په لغت کي پاکولو او چڼولو ته وایي، یعني د یو شي ګټور شیان ذکرول او غیر ضروري شیان ځني ایسته کول.

خو کله چي د کشف الظنون او خپله د کتاب التقاسیم والانواع چي اوس په "الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان" سره یادېږي او زما سره په کتابتون کي سته وکتل سي، نو به معلومه سیه چي علي بلبان فارسي هغه ترتیب او منظم کړی دئ نه تنقیح.

صاحب د کشف الظنونو وایي:

ژباړه: "صحیح ابن حبان" د حدیثو په فن کي د ابو حاتم محمد د حبان بستي د زوی (۳۵۴مړ) تصنیف دئ خو سراج الدین عمر (۸۰۴ مړ) د علي زوی چي په ابن الملقن سره شهرت لري، مختصر کړی دئ. وروسته امیر علاء الدین علي د بلبان الجندي فقیه حنفي زوی (۷۳۱ق مړ) پر بابونو ترتیب کړ.

د دې کتاب په اړه خپله علي بن بلبان

داسي ليکي:

د ابن حبان بستي کتاب چي د "التقاسيم والانواع" په نامه يادېږي د احاديثو په کتابونو کي يو بې جوړې کتاب دئ، خو څنگه چي د دې کتاب څخه استفاده گرانه وه، هر چا نه سوای کولای چي گټه ځني واخلي نو ما دا لازمه وبلله چي د خدای عزوجل په توفيق نوموړی کتاب پر بابونو مرتب کړم او د "الاحسان فی تقريب صحيح ابن حبان" په نامه ئې ونوموم (مقدمه صحيح ابن حبان: ۱/ ۲۲).

## د ابن حبان زده کړه او تدريس:

ابن حبان هم د نورو محدثينو په څېر د اسلافو کړنلاره غوره کړې ده او د نړۍ گوټ گوټ ته ئې د حديثو د راغونډولو په غرض سفرونه کړي او له ډېرو استادانو څخه ئې زده کړه کړېده.

نوموړی د خپل تاليف (الصحيح) په مقدمه کي د خپلو استادانو شمېر دوه زره تنه ښيي. دا چي ده کومو ځايو ته سفرونه کړي او هلته ئې له کومو استادانو څخه زده کړه کړې او تر کوم تعداده پوري د تاريخ د فن پوهان ئې يادونه کوي، دا ټول هغه څه دي چي بايد بشپړ وضاحت ئې وسي. ما تر خپله وسه پوري د ابن حبان د استادانو په باب مستند معلومات رايو ځای کړي دي، چي دلته ئې تاسي ته وړاندي کوم:

په ارغيان کي: ابو عبدالله محمد بن المسيب بن اسحاق الارغياني (زوکړه: ۲۲۳هـ مړينه: ۳۱۵هـ).

په اُبله کي: ابويعلی محمد بن زهير (۳۱۸ هـ مړ)، عمر بن عبدالله بن عمر الهجري، حسين بن محمد بن بسطام.

په انطاکيه کي: وصيف بن عبدالله الحافظ (۳۱۳هـ ق مړ).

په اهواز کي: ابوالعباس محمد بن يعقوب الخطيب.

په اذنه کي: محمد بن علان الاذني.

په بُست کي: ابو احمد اسحاق بن ابراهيم القاضي (۳۰۰ق مړ)، ابوالحسن بن عبدالله ابن الجنيد البستي.

په بصره کي: ابو خليفه بن الحُبان الجمحي (زوکړه: ۲۰٦ق، مړينه ۳۰۵ق)، احمد بن عمرو الزبيقي، ابو يحيی زکريا بن يحيی الساجي (۳۰۷ ق مړ)، ابو سعيد عبدالکريم بن عمر الخطابي، بکر بن احمد بن سعيد الطاحي، محمد بن علي الصيرفي، محمد بن ابراهيم البدوري، محمد بن عذار الحارثي.

په بغداد کي: ابوالعباس حامد بن محمد شعيب البلخي (زوکړه: ۲۱٦ق، مړينه: ۳۰۹ق)، ابو احمد الهيثم بن خلف الدوري (۳۰۷ ق مړ)، ابو القاسم عبدالله بن محمد بن عبدالعزيز البغوي (زوکړه: ۲۱۴ق، مړينه: ۳۱۷ق)، احمد بن الحسن بن عبدالجبار الصوفي (زوکړه: ۲۱۰ق، مړينه ۳۰٦ق).

په بيت المقدس کي: عبدالله بن محمد بن مسلم المقدسي الخطيب (زوکړه: ۲۳۹ق، مړينه: ۳۱۸ق).

په بيروت کي: محمد بن عبدالله بن عبدالسلام البيروتي المعروف بمکحول (۳۲۱ق مړ).

په تستر کي: ابوجعفر احمد بن محمد بن يحيی بن زهير الحافظ.

په جرجان کي: عمران بن موسی بن مجاشع (زوکړه: ۲۱۰ - ۲۲۰ق، مړينه: ۳۰۵ق)، احمد بن محمد بن عبدالکريم الوزان.

په جندنيسابور کي: محمد بن حفص

البزار (۳۱۳ق مړ).
په حمص کي: محمد بن عبیدالله الفضل الکلاعي الراهب.
په حلب کي: علي بن احمد بن عمران الجرجاني.
په دمشق کي: ابوالحسن احمد بن عمیر بن جوصاء الحافظ (زوکړه ۲۳۰ق شاوخوا، مړینه: ۳۲۰ق)، جعفر ابن احمد بن عاصم الانصاري، ابوالعباس حاجب بن ارکین الفرغاني (۳۰٦ق مړ).
په ري کي: ابوالقاسم العباس بن الفضل بن عازان المقري، علي بن الحسن بن مسلم الرازي.
په رمله کي: ابوبکر محمد بن الحسن ابن قتیبة العسقلاني (۳۱۰ق مړ).
په الرقه کي: حسین بن عبدالله بن یزید القطان (۳۱۰ق شاوخوا مړ).
په الرافقه کي: محمد بن اسحاق بن ابراهیم بن فروخ البغدادي (۳۲۰ق مړ).
په سرغامرطا کي: ابو بدر احمد بن خالد بن عبدالملک بن عبدالله بن سراح الحراني.
په سامراء کي: علي بن سعید العسکري (۳۰۵ یا ۳۱۳ق مړ).
په سنجار کي: علي بن ابراهیم بن الهیثم الموصلي.
په سنج کي: ابوعلي الحسین بن محمد بن مصعب السنجي (۳۱۵ یا ۳۱٦ ق مړ)، ابو عبدالله محمد بن نصر بن قرقل الهورقاني.
په صغد کي: ابو حفص عمر بن محمد بن یحیی الهمداني (زوکړه: ۲۲۳ق، مړینه: ۳۱۱ق).
په صیداء کي: محمد بن ابی المعافي بن سلیمان الصیداوي.
په صور کي: جعفر محمد الهمداني.
په طرسوس کي: محمد بن یزید الدرقي، ابراهیم بن ابي امیة الطرطوسي.
په عسکر مکرم کي: ابو محمد عبدالله بن احمد بن موسی الجوالیقي المعروف بعبدان الاهوازي (۳۰٦ق مړ).
په فم الصلح کي: عبدالله بن قحطبه بن مرزوق الصلحي.
په کوفه کي: ابو محمد عبدالله بن زیدان البجلي.
په کفرثوثا کي: محمد بن الحسین بن ابی معشر السلمی.
په کرج کي: ابو عماره احمد بن عماره بن الحجاج الحافظ، الحسین بن اسحاق الاصبهاني.
په منبج کي: عمر بن سعید بن سنان الحافظ، صالح بن الاصبغ بن عامر التنوخي.
په مکه مکرمه کي: ابوبکر محمد بن ابراهیم بن المنذر النیسابوري صاحب کتاب الاشراف فی اختلاف الفقهاء (۳۱۸ مړ)، ابو سعید المفضل بن محمد بن ابراهیم الجندي (۳۰۸ق مړ).
په موصل کي: ابی یعلی احمد بن علي بن المثنی الموصلي (زوکړه: ۲۱۰ق، مړینه: ۳۰۷ق)، هارون بن المسکین البلدي، ابو جابر زید بن علی بن عبدالعزیز بن حیان الموصلي، روح بن عبدالمجیب الموصلي.
په مصر کي: ابو عبدالرحمن احمد بن شعیب بن علي النسائي (زوکړه: ۲۱۵ق، مړینه: ۳۰۳ق)، سعید بن داود بن وردان المصري، علي بن حسین بن سلیمان بن المعدل.
په مرو کي: عبدالله بن محمود بن سلیمان السعدي (۳۱۱ق مړ)، ابو یزید محمد بن یحیی بن خالد المدیني.
په نساء کي: ابو العباس الحسن بن سفیان الشیباني (۳۰۳ق مړ)، محمد بن عمر

بن یوسف، محمد بن محمود بن عدی.

په نیسابور کي: ابوالعباس محمد بن اسحاق بن ابراهیم السراج الثقفی (زوکړه: ۲۱۶ق، مړینه: ۳۱۳ق)، ابو محمد عبدالله بن محمد بن عبدالرحمن بن شیرویه الازردي (زوکړه: د ۲۱۰ یا ۲۲۰ په شاوخوا کي، مړینه: ۳۰۵ق).

په تهرسایس کي: خلاد بن محمد بن خالد الواسطی.

په نصیبین کي: ابو السری هاشم بن یحیی النصیبیني، مسدد بن یعقوب بن اسحاق الفلوسي (۳۲۵ق مړ).

په المصیصه کي: ابو طالب احمد بن داود بن محسن بن هلال المصیصي.

په واسط کي: ابو محمد جعفر بن احمد بن سنان القطان، خلیل بن محمد الواسطي ابن بنت تمیم بن المنتصر، احمد بن موسی.

په هراة کي: ابوبکر محمد بن عثمان بن سعدالدارمي.

په بخارا کي: عمر بن محمد بن یحیی.

په بحران کي: ابي عروبه.

په طبریه کي: سعید بن هاشم.

په عسقلان کي: محمد بن الحسن بن القتیبه.

په نیسابور کي: ابن خزیمه، ماسرجیسي.

پورته پنځه ځایه امام ذهبي په سیر اعلام النبلاء کي ذکر کړي دي (وګ: سیراعلام النبلاء: ۲۴۶/۱۲).

د ابن حبان په استادانو کي یو تن ابن خزیمه نومېږي. ابن خزیمه شافعي مذهبه دئ او د نیسابور اوسېدونکی دئ. په ۲۱۳ق زوکړی او په ۳۱۱ق وفات سوی دئ.

## د ابن حبان په اړه د علماوو نظریات

د ابن حبان په باب علماء دوه ډوله نظریات لري، یوه ډله ئې مني او دوهمه ئې غندي.

### منونکې ډله:

۱. حاکم د المستدرک مصنف: ابو حاتم بستي د علم خزانه وه. په لغت، فقه او حدیث کي ئې بشپړ معلومات درلودل. ډېر ښه واعظ او په حدیثو کي ئې داسي تصنیف وکړ، چي ساری نه لري، په دې فن کي د تصنیف په ډګر کي څوک تر ده وړاندي نه دئ (وګ: سیر اعلام النبلاء: ۲۴۷/۱۲).

۲. خطیب بغدادي: ابن حبان یو تکړه علام او د علماوو په ټولنه کي د اعتماد او باور څښتن دئ. ډېر ښه خویونه ئې لرل (وګ: سیر اعلام النبلاء: ۲۴۷/۱۲).

۳. سمعاني: ابو حاتم د خپل عصر امام او داسي تصانیف ئې کړي دي چي په دې ډګر کي هیچا تر دې وړاندي والی نه دئ کړی.

۴. ابن اثیر: ابن حبان د خپل عصر امام وو او د تصنیف په ډګر کي تر ټولو وړاندي وو.

۵. ابن حجر عسقلاني: ابو حاتم د خپل عصر له امامانو څخه وو. د حدیثو په لټه ئې د (۳۰۰هـ) په سر کي پیل کړ. پر دې سربېره چي د حدیث په پېژندنه کي ممتاز وو، په طب، کلام او فقه کي ئې هم زیات معلومات لرل (وګ: لسان المیران: ۱۱۹/۵).

۶. ابو سعید الادرسي: ابن حبان حافظ د آثارو او د دین له فقهاوو څخه وو برسېره پر دې په طب، نجوم او نورو

علومو کې ئې هم بشپړ معلومات لرل (وګ: سیر اعلام النبلاء: ۱۲/ ۲۴۷).

۷. امام ذهبي هم د ابن حبان علمیت، حفظ، امامت او ثقه والي ته قایل دئ (وګ: میزان الاعتدال: ۶/ ۹۹).

۸. عمر رضا کحالة: محمد بن حبان بستي د امام شافعي په مذهب محدث، حافظ، مؤرخ، فقهي، لغوي، واعظ وو. پر دې سربېره په علم طب او نجوم کې ئې هم پوره لاس درلود (وګ: معجم المؤلفین: ۹/ ۱۷۳).

**غندونکې ډله:**

ځینې علماء د ابن حبان په باب منفي نظریات لري، لکه:

۱/ ابو اسماعیل عبدالله بن محمد الانصاري (۳۹۶ – ۴۸۱ق) د (ذم الکلام) مؤلف وایي: د عبدالصمد د محمد د زوی د محمد له لمسي ځخه مي واورېدل چي ویل ئې: ما د خپل پلاره د ابن حبان په هکله داسي څه اورېدلي چي چي ابن حبان د هغه وینا په سبب د زندقت په تور متهم او د قضا له منصبه معزول سو، آن تر دې چي د وخت خلیفه د مرګ حکم پر وکړ، هغه وو چي نوموړی وتښتېدی.

هغه وینا داسي وه: "النبوة العلم و العمل" یعني ابن حبان د نبوت معنا په علم او عمل کولو سره کړې وه. حقیقت دا دئ چي نبوت کسبي نه دئ دا د خدای پاک له خوا یو فضل او عطا ده، که څوک داسي عقیده ولري، چي نبوت کسبي دئ العیاذبالله دغسي عقیده واقعاً کفر او زندقت دئ (وګ: سیر اعلام النبلاء: ۱۲/ ۲۴۸، لسان المیزان: ۵/ ۱۲۰، میزان الاعتدال: ۶/ ۹۹).

دا چي دغسي حکایات به څونه حقیقت ولري، معلومه نه ده، خو بیا هم د دغسي پوښتنو جوابونه به د امام ذهبي او ابن حجر عسقلاني په عباراتو کي ولټوو.

پورته حکایت غریب دئ، آن تر دې چي حقیقت به هم و نه لري، ځکه چي ابن حبان د علم ډېره لویه برخه لرله او هغه په احادیثو کي دونه ماهر وو چي د محدثینو په ټولی کي ئې د علامه لقب ګټلی وو.

که چیري احیاناً ابن حبان دا خبره هم کړې وي او دغه حکایت حقیقت ولري، نو بیا خو د ابن حبان د دنیا مطلب ښکاره او په ډاګه دئ چي د نبوت پایه علم او عمل دئ. ولي چي الله عزوجل د نبوت منصب هغه چا ته ورپه برخه کوي کوم چي په علم او عمل ښکلی وي. نبي د الله پاک د وحي په ذریعه عالم جوړېږي او د الهي علم د شتون سره عمل لازم دئ. ځکه نو د ابن حبان وینا سنه ده چي نبوت لدني علم او خدای عزوجل ته نزدې کېدونکی عمل دئ.

کله چي د نبوت تشریح او وضاحت د دغو دوو صفتو په شتون کي وسي دا خو سمه خبره ده، چي د دغو دواړو صفاتو د لاسته راوړلو له پاره د الهي وحي پرته بله کومه لاره نسته، ځکه وحي رښتونی علم دي، په دې ځای کي ګومان ته د مداخلې موقع نسته.

د انبیاء علیهم السلام له علم څخه پرته د نورو علم هم یقیني دئ، خو ګوماني علم ئې ډېر وي. د نبوت سره عصمت او پاکي لازمه ده، ځکه انبیاء علیهم السلام د نبوت له منصب څخه مخکي او د نبوت د منصب په درشل کي د لویي او غټي ګناه څخه پاک او ستره دي، ولي له دوی پرته نور ټول معصوم نه دي.

د ابن حبان وینا به هم د پیغمبر علیه

السلام هغه وینا ته ورته وي چي پیغمبر علیه السلام ویلي دي: "الحج عرفة" یعني حج عرفات دئ. دا داسي نه ده چي حج یوازي پر عرفات دربدل دي، بلکي د حج له رکنونو څخه هغه ارین او لوی رکن پر عرفات دربدل دي، نو به د ابن حبان د خبري مطلب داسي وي چي د نبوت ارین او اساسي رکن علم او عمل دئ. یعني د ابن حبان مطلب حصر نه دئ چي نبوت یعني علم او عمل ځکه دغسي عقیده ربښتیا هم کفر ده (وګ: سیر اعلام النبلاء: ۱۲/ ۲۴۸، لسان المیزان: ۵/ ۱۲۰، میزان الاعتدال: ٦/ ۹۹).

۲/احمد بن علي بن عمرو بن احمد بن ابراهیم بن یوسف بن عنبر، سبط احمد بن سلیمان السلیماني البیکندي البخاري مشهور په حافظ بیکندي (۳۱۱ - ۴۰۴هـ ق) د خپلو شیخانو په حواله لیکي چي: ابن حبان یو درواغجن شخص دئ او داسي یادونه ئې هم کړېده چي زموږ و خوا ته ابو حاتم محمد بن حبان بستي له سمرقند څخه په (۳۲۹ یا ۳۳۰ق) کي راغلی وو بیا ما ته ابو حاتم سهل بن السري وویل چي: د ابن حبان یوه خبره هم مه لیکه، ځکه چي هغه درواغ وایي.

کله چي ابن حبان هلته قاضي سو، ده ابو طیب المصعی ته د قرامطه په اړه کتاب جوړ کړ او هغه ته ئې ورکړ، همدغه سبب د ده د قضاوت وو، خو کله چي خلک په خبر سول نو ئې د ده پر ضد پاځون وکړ او د ابن حبان د وژلو اراده ئې وکړه، حبان په تېښته و بخارا ته ولاړ او هلته ئې د دلالی کسب شروع کړ. تر څو چي ابن حبان د بزازانو څخه د پنځه زرو درهمو دول دول توکران د دوو میاشتو په وعده رانیول، خو ابن حبان د شپې له مخي وتښتېدی او د خلکو مالونه ئې یووړل.

په بل ځای کي د ابن حبان په هکله لیکل سوي دي چي ابن حبان په قراطمه ؤ کي و این بایو ته کتاب ورکړ (معجم البلدان: ۴۱۹/۱). کوم اتهام چي د حافظ بیکندي له لوري پر علامه ابن حبان وارد سوی دئ د هغه د دفع له پاره د علامه ذهبي په لاندني وینا اکتفا کوو، چي وایي:

د حافظ بیکندي یو کتاب مي ولید، پر لوړو اشخاصو ئې بې ځایه نیوکي کړي وې، د دې وړتیا نه لري چي څوک دي د ده دغسي نیوکي واوري، مګر یو ځای هغه هم نادر (سیر اعلام النبلاء: ۱۳/ ۱۲۳).

پر ابن حبان چي کوم د غلا تور لګېدلی دئ، دغسي تور خو هغه څوک هم نه مني چي لږ څه پوهه ولري، چي د ده پوره حالت او پېژندنه ستاسي تر نظر تېره سوه.

پر ابن حبان باندي د تورونو او نیوکو په باب امام ذهبي او علامه ابن حجر عسقلاني په خپلو تالیفاتو کي منصفانه جوابونه موجود دي، کتونکي ته ئې د شک و شبهې هیڅ ځای نه دئ اپرې ایښی.

ځینو مؤلفینو لکه یاقوت حموي په معجم البلدان او مرحوم بینوا صاحب په (د افغانستان نومیالي) کي پر نوموړي باندي څه اعتراضات رانقل کړي دي، د مثال په ډول:

بینوا صاحب لیکي: "محمد د حبان زوی د احمد نمسی ... د هلمند په بست کي زېږېدلی او د علومو تر زده کړي وروسته په سمرقند کي قاضي وو، خو د زندقه د تور په وجه عزل کړه سو، ځکه چي دی په دې عقیده وو، چي نبوت علم او عمل دئ" (د افغانستان نومیالي: ۸٦/۱).

نور کتابونه لکه معجم البلدان، میزان الاعتدال، لسان المیزان او سیر اعلام النبلاء ټوله د دغي کیسې یادونه کوي، چي دا پر علامه ابن حبان باندي یو تور دئ. که د

مرحوم بېنوا صاحب عبارت ته وګورو د عبارت سر او پای سره متناقض او ټکر دي، ځکه د عبارت په سر کې علامه ابن حبان متهم او د عبارت په پای کې مجرم دئ.

متهم: هغه څوک چې د خصم په زعم پر نوموړي باندي تور لګېدلی وي، دا تور د ګومان پر اساس وي نه د یقین له مخې.

مجرم: هغه څوک چې جرم او ګناه ئې په اثبات رسېدلې وي.

په پورتني عبارت کې دوې فقرې چې یوه ئې "خو د زندقه د تور په وجه عزل کړه سو" او بله فقره چې "ځکه چې دی په دې عقیده وو چې نبوت علم او عمل دئ". دوهمه فقره د اولې له پاره علت دئ یعني د ابن حبان دغسې عقیده د نوموړي د عزل کېدو باعث وګرځېده، نو که عبارت پر دغسې حالت پرېښوول سي کوم تناقض چې تر سترګو کېږي هغه به رفع نه سي.

زه وایم کېدای سي چې دلته قلمي تېروتنه واقع سوې وي، ښایي اصلي عبارت داسې وي: "په سمرقند کې قاضي وو، چې د زندقه د تور په وجه عزل کړه سو، ځکه چې نوموړی د مخالفینو په آند په دې عقیده وو چې نبوت علم او عمل دئ".

په دې ډول تناقض هم لیرې کېږي او د ابن حبان په باب د هغه د مخالفینو رایه هم په ښه ډول واضح کېدای سي.

## د ابن حبان دندې:

علامه ابن حبان د تدریس لړۍ جاري ساتلې وه او ډېر شاګردان ئې روزلي ول، چې د هغو له جملې څخه ئې د بېلګې په ډول د ځینو کسانو نومونه یادوو:

۱/ امام حاکم د مستدرک نومي کتاب مصنف، ۲/ ابن مند د غنجار، ۳/ ابو علي، ۴/ منصور بن عبدالله بن خالد دهلوي هروي، ۵/ ابو سلمه محمد بن محمد بن داود شافعي، ٦/ جعفر بن شعیب ابن محمد سمرقندي، ۷/ حسن ابن منصور اسفجاني، ۸/ حسن بن محمد بن سهل فارسي، ۹/ ابو الحسن محمد بن هارون زوزني، ۱۰/ ابو عبدالله محمد بن احمد بن عبدالله بن خشنام سروطي او داسې نور...

څنګه چې علامه د هر فن څخه بشپړ معلومات درلودل، نو خلکو هم و دې ته تلوسه درلوده چې د داسې چا څخه ئې تر لاسه کړي چې په اړونده علومو کې د مهارت درجې ته رسېدلی وي.

د معلوماتو د تحصیل په اړه خپله علامه هم خورا تلوسه درلوده، د ده په استادانو کې یو هم حافظ ابن خزیمه نومېږي. علامه به له هغه څخه دوني پوښتني کولې، چې یوه ورځ خپل استاد ځني په عذاب سو، او ورته وئې ویل: اې جذباتي! ما مه تنګوه شا ته سه، یا دې ته ورته څه نور الفاظ ئې ورته وویل. خو ابو حاتم داجمله هم د نورو جمل په شان ولیکل، یو چا پوښتنه ځني وکړه: آیا دا هم لیکې؟ علامه ورته وویل: هو! زه د استاد هره خبره لیکم.

علامه خپل ټول ژوند و تدریس، وعظ او تصنیف ته وقف کړی وو. خو کله کله به د څه ناخوالو سره هم مخامخ کېدی او د حسد او عناد په وجه باندي پرې تورونه لګېدل. په دې ځای کې هغه وراشه پوره صدق کوي چې وایي: "همېشه ثمر لرونکې ونه په ډېرو ویشتل کېږي". خو علامه بیا هم له صبر او زغم څخه کار اخیستی.

ډېره موده ئې په سمرقند کې د قضا چارې مخته یووړې. یو څه وخت په نساء کې هم قاضي وو. په نیشاپور کې ئې درې ځله د قضا دنده تر سره کړېده. په آخري ځل چې

هلته د قاضي په صفت مقرره کېدی، هلته ئې دربار جوړ کړ او ډېرو کسانو به زده کړې ځني کولې.

کله چي به د دښمنانو له خوا دسیسې ورته جوړېدې، علامه ابو حاتم د انتقام او غچ اخیستو په چرت کي نه وو. او نه ئې چا ته د سوال لاس نیولی دئ، ځکه دی خپله شتمن او له پدایي کورنۍ څخه وو. ځکه ئې نو په آخر کي خپل ټول کتابونه وقف کړل.

حره زینب شعري د زاهر بن طاهر څخه هغه بیا د امام احمد بن حسین څخه په ثابت سند نقل کوي، او وایي، چي: په مکه کي حافظ ابو عبدالله الحاکم د علامه ابو حاتم په هکله خبري کولې داسي ئې وویل: یوازي د ابو حاتم کور دئ چي هلته د ده ملګرو مدرسه ولاړه ده او د مسافرینو زده کوونکو او غریبانو ټاټوبی دئ. هلته هغه څوک اوسېږي چي د حدیثو او فقهي علم حاصلوي. هلته یو لوی بکس پروت دئ چي طالبانو به د مصرف له پاره پیسې ځني رااخیستلې او خپل د اړتیا وړ توکي به ئې په رانیول.

هلته یو کتابتون هم سته چي مسئولیت ئې زما پر غاړه دئ، علامه ما ته داسي وصیت کړی دئ چي د کتابتون کتابونه و لوستونکو ته ورکوه څو خپله استفاده ځني وکړي، خو دا کتابونه تر مدرسې دباندي څوک ایستلای نه سي. الله عزوجل دي علامه ته اجر عظیم ورکړي.

### د ابن حبان مړینه او د ښخېدو ځای:

یاقوت حموي په معجم البلدان کي د خپل شیخ ابوالقاسم خرستاني په حواله لیکي: "د علامه ابو حاتم بستي مړینه په ۳۵۴ق د کوچني اختر د میاشتي پر دوه ویشتمه د پنجشنبې په ورځ واقع سوې ده، د علامه و کور ته نژدې پر یوه دوکانچه باندي د ده قبر جوړ دئ".

حافظ ابو عبدالله غنجار لیکي:

علامه ابو حاتم بستي په ۳۵۴هجري کال په سجستان کي وفات سوی دئ.

یاقوت حموي وایي چي اوس هم په بست کي د ده زیارت سته، که بالفرض علامه په سجستان کي وفات سوی وي، نو به ئې د هغه ځایه و بست ته راوړی وي او په بست کي به ئې ښخ کړی وي. خو دا روایت د سند له مخي ضعیف دئ. صحیحه خبره دا ده چي علامه په بست کي وفات او ښخ دئ (وګ: معجم البلدان: ۱/۴۱۹).

**ماخذونه:**


۱. معجم البلدان د یاقوت حموي
۲. لسان المیزان د ابن حجر عسقلاني
۳. سیر اعلام النبلاء د امام ذهبي
۴. میزان الاعتدال د امام ذهبي
۵. تذکرة الحفاظ د امام ذهبي
۶. معجم المؤلفین د حاجي خلیفه
۷. تاریخ اسلام د امام ذهبي
۸. لغت نامه دهخدا
۹. الاکمال د ابن ماکولا
۱۰. انباء رواة علی انباء السخاة د علي بن یوسف القفطی
۱۱. جغرافیایي یادابښتونه د علامه رشاد
۱۲. د کندهار یادابښتونه د علامه رشاد
۱۳. د افغانستان نومیالي د استاد بېنوا
۱۴. البدایه والنهایه د ابن کثیر
۱۵. مقدمه روضة العقلاء د ابن حبان
۱۶. آریانا دائرة المعارف، څلرم ټوک
۱۷. د صحیح ابن حبان مقدمه
۱۸. د افغانستان جغرافیایي قاموس


***



حاجي عبدالظاهر څرک

# محمود فاراني



محمود فاراني په پښتو کي د "نوي شعر" د لومړيو ويونکو څخه دئ. که څه هم ده پښتو شعر ډېر لږ ليکلی دئ اما په فارسي ژبه کي د شعر مجموعې د "رؤيای شاعر" او "سفر در توپان" او "آخرين ستاره" په نوم ما ليدلي دي.

محمود فاراني په ۱۳۱۸ش کال په کابل کي زېږېدلی دئ. لومړني تحصيلات ئې په کابل کي سر ته رسولي دي، وروسته د کابل پوهنتون د شرعياتو له پوهنځي څخه فارغه سوی دئ. په پښتو، فارسي او عربي ئې شعرونه ويلي دي.

ډېر وخت د اصلاح ورځپاڼي مدير وو. وروسته د داودخان په جمهوريت کي د جمهوريت ورځپاڼي مدير مقرر سو.

د ثور تر کرغېړني کودتا وروسته خلقيانو په ډېره بې عزتي بندي کړ. فاراني صاحب اوس هم ژوندی دئ او په خارج کي ژوند کوي. د ده يو دوه پښتو شعرونه ستاسي حضور ته وړاندي کوم.

## د غرو غروب

سپينو دنگو غرونو شاته
زيړی لمر وروورو پټېږي

زما هېر او مړه یادونه
بیا مې زړه کې ژوندي کېږي

ماځیګر وږمه چلېږي
رپوي وحشي ګلونه
په درو کې انګازه کړي
د زرو شپنو ږغونه

د کېږدۍ مېرمني پیایي
سپرلکي په شنو وښو کې
یو کمکی ماشوم ویده دئ
کېږدۍ لاندي په زانګو کې

د نښترو ګڼ ځنګله کې
کړوني سندري وایي
سرایي ښایسته پېغله
یو جونګی او بوته بیایي

د نښترو ځانګو باندي
ځنګلي مرغان چغېږي
د تورتم راتګ نژدې دئ
ګوندي دوی ورته ډارېږي

د شفق وروستۍ وړانګې
مچوي او چت ښاغونه
زه لا هسي چورت کې ناست یم
ځوروي مې تېر یادونه

***

## جاله وان

د سپوږمۍ روپۍ ځلېږي
د تورتم پر او ربل باندي
د ګودر ځپې ګډېږي
د سپینکو پلوشو لاندي

د زړې کلا په خوا کې
هلته لیري او ربلېږي
سرې لمبې په تروږمۍ کې
یو د بلې نه تاوېږي

د ساحل پر پستو شګو
کلیوالي پېغلي ناځي
د هغو پر سپینو مټو
سپینه زرکه هسکه ځاځي

شنو او ګڼو ونو لاندي
د ګودر پر هغه غاړه
جاله وان یوازې ناست دئ
او جاله هم ده ولاړه

اند پښمن او غمجن هسي
د ځپو نڅا ته ګوري
کله کله سر کړي پورته
او د لاري خوا ته ګوري

ګوندي کم پردېس پیدا سي
چي تېرېږي د اوبو نه
دی بچي ته سکړک واخلي
د هغه د ځه پیسو نه

نیمه شپه سول ستوري پټ سول
د تیارو غرونو وشا ته
جاله وان لا هسي ګوري
په سپوږمۍ کې لاري خوا ته

***



لیکوال: استاد محمد معصوم هوتک/کاناډا
مترجم: مطیع الله روهیال

# تُرکان که تَرَکان؟

یادونه:
استاد هوتک دا مقاله په پارسي لیکلې وه، ما (روهیال) د دوی په غوښتنه په پښتو ترجمه کړه. خدای دې وکي چې د اصلي متن مفهوم ته مې زیان نه وي اړولی.

***

علمي او اکاډمیک مسائل که د سیاست او تعصب له نوني څخه وشنل سي، څېړونکی، لیکوال او لوستونکی درې سره بې لاري کوي. خو که د علمي او اکاډمیکو اصولو له مخې ئې پلټنه او تحقیق تر سره سي، که څه هم چې تولمنلي او قبول سوي مسائل تر پوښتني لاندي ونیول سي، باید چې ومنل سي. د پښتني قومونو اصل، منشاء او ریښه له پېړیو پېړیو څخه تر شنني او پلټني لاندي ده. خو د تېري پېړۍ ژبنیو تحقیقاتو او څېړنو دا ثابته کړه چې پښتانه د ساک له ریښې څخه دي. دا نظریه فقید مارکنسټرنه تر ټولو لسیزو تحقیقاتو وروسته وړاندي کړه، او په دې باره کي ئې د ټولو پښتنو یا د پښتنو د ځینو قومونو د تُرک بللو پر نظریه د بطلان لیکه راکش کړه او په اصطلاح د تاریخ کندي ته ئې ورواچوله.

په دې ورځو کي یو ځل بیا د سیاسي او تعصبي لاملو له اسیته د پښتنو د تُرک بللو افسانه ګرمه سوې ده او په دې باب موافقو او مخالفو لیکوالو ځانونه مصروف ساتلي دي. یوه خبره باید واضحه کم، که چیري علمي پلټني او اکاډمیک تحقیقات دا ثابته کي، چې له اتنیکي اړخه پښتانه د تُرکانو له ریښې څخه دي، د دې کرښو لیکوال به د یوه پښتانه افغان

په صفت دا نظریه قبوله کړي. دا ځکه چي تُرکان د اوسنۍ نړۍ یا په مجموع کي د بشریت یوه لویه کتله تشکیلوي که چیري پښتانه هم تُرکان وي دا خو څه عیب نه دئ. خو که څوک وغواړي چي د پښتنو د تُرک بللو په اړخ کي منلي ژبني اصول او د توکم پېژندني مسائلو ته اهمیت ور نه کړي بلکي علمي او اکاډمیکو مسائلو ته د ورځي په نرخ سیاسي او مصلحتي پوښ ورکاندي، بیا نو د دې کرښو د لیکوال له پاره به دا ډېره مشکله وي چي دغه ډول نظریات ومني.

د "تُرک (Turk)، تَرک (Tarak)" او دغو دوو کلمو د ګډوالي موضوع ما (هوتک) د خپلي کوچنۍ رسالې "پښتني قبیلې او روایتي ریښې" په پنځم فصل کي څېړلې ده او د لوی استاد علامه عبدالحي حبیبي د څېړنو او تحقیقاتو په پیروي مي نسبتاً په مفصل ډول بیان کړې ده، او دا مي ښکاره کړېده، چي په فارسي کتابونو کي د کلماتو د اعراب نه موجودیت د دې باعث سوی دئ، چي ځیني کسان د تَرک (Tarak) کلمه د تُرک (Turk) د کلمې سره یوه وبولي. په پورته یاده سوې رساله کي دا واضح سوي دي، چي د پښتنو یوه برخه د آریایي نژاده قومونو تَرکان (Tarakan) سره نسلي اړیکی لري، او ځینو لیکوالو د (Tarak) کلمه د عربي و فارسي الفبې له مخي تُرک لوستلې ده او د پښتنو د تُرک بللو افسانه ئې رامنځته کړېده.

دغه تَرکان څوک دي؟ دلته به د خپلو تحقیقاتو یوه برخه چي د قدرمن پوه ښاغلي ډاکټر عبدالرازق پالوال په غوښتنه مي سر ته رسولي دي، د یوه احتمالي نظر (hypothesis)په ډول محترمو لوستونکو ته وړاندي کم او په دې امید یم چي قدرمن پوهان به هغه نقد کړي او ما ته به لارښووني وکاندي.

تقریباً تر میلاد اووه پېړۍ مخکي د هندواروپایي قبایلو یوې جنګړه ډلي د یونان، جنوبي روسیې او د اوسنۍ ترکیې په شمال لوېدیځ کي ژوند کاوه. دغه قبایل په خپل منځ کي د یوې ژبي او مشترک کلتور لرونکي ول. د دوی د ژوند کولو طرز قبایلي (Tribal Homeric) بلل سوی دئ. دا قبایل ئې (The Thracians) یا (The Trakians) بللي دي او وایي چي شمېر ئې یو میلیون ته رسېدی، دوی څلوېښت قبیلې لرلې. په لیکلو زړو آثارو کي راغلي دي چي تراکان (The Thracians) د دې منطقې له غښتلو او جنګړه قبیلو څخه ول. له هیرودوتسه نقل سوی دئ چي: که چیري د تَراکانو په خپل منځ کي قبیلوي شخړي او خپل منځي اختلافات نه وای، تراکان (The Thracians) به یو ډېر قوي ملت وای (وګورئ: Christopher Webber – The Thracians ۷۰۰ BC – AD، ص ۴۶، چاپ ۲۰۱۰ع). افلاطون پخپل مشهور اثر (جمهوریت) کي وایي، چي: تراکان او ساکان ډېر زړه ور او د لوړي جنګي روحیې څښتنان دي چي یو د بل په ګاونډ کي اوسېږي (له انټرنیټي منابعو څخه).

په زړو منابعو کي تراکان د (سرو وېښتانو) په نوم یاد سوي دي. هغه سیمه چي تَراکان پکښې اوسېدله د تراس (Thrace) په نامه بلل سوې ده. دوی ټول په کلیو او بانډو کي اوسېدل، تر ټولو مهم ښار ئې چي د (Thrace) په منطقه کي ئې ودان کړی وو، سیوتوپولیس (Seuthopolis) نومېدی. تراکان د سترو لښکرو د راغونډولو ظرفیت درلود. یونانیان او رومیان د بالقان مدنیت له شمالي برخو څخه د تراکانو یرغل تهدیدول او له دې ناحیې څخه سخت په بېره کي ول. ویل

کېږي چې مقدوني سکندر تراکان د ایسوس (Issos) سره جنګ ته وهڅول تر څو د پارسیانو ټول سره و سپین زر په غنیمت تر لاسه کړي. د تراکانو د وسلو، جنګي جامو او جنګي وسایلو خورا ډېرې نمونې موجودې دي.

ویل کېږي، چې تراکانو لومړی سلطنت د (Odrysian Kingdom) په نوم د ۴۶۰ قبل المیلاد په شاوخوا کې تاسیس کړ. اُدریسیان د تراکانو تر ټولو غښتلې او قوي قبیله وه او اکثریت تراکاني پادشاهان دغې قبیلې ته منسوب دي. اُدریسیان وتوانېدل چې د تراکانو ټول قبایل سره منظم او متحد کړي.

تراکان په شپږمه او اوومه میلادي سدۍ کې د سلاویانو (سلاویک) تر لوی مهاجرت وروسته له منطقې ووتل او یا په نورو قومونو ګډ سول. د تراکانو ژبه او کلتور تر دریمي میلادي پېړۍ پوري لا موجود ول. اروپایي مؤرخین تراکان د دانیوب د منطقې د ساکانو یوه برخه بولي (وګورئ: پورته اثر ۵ مخ) او وایي چې د دوی ژبه د هندواروپایي ژبو له جملې څخه ده.

د دې کرښو لیکوال په نظر کې لري چې د خدای په توفیق، که د مهاجرت په سترې او ستومانه ژوند کې لږ و ډېر د دې زمینه مساعده سي، د تراکانو په باب د انګرېز پوه کریستوفر ویبر لیکلی اثر په پښتو یا فارسي ترجمه کړي.

دلته باید یادونه وکم چې ما (هوتک) د تراکانو او پښتنو کوچیانو تره کو په منځ کې ډېر شباهتونه پیدا کړي دي، او په دې عقیده یم چې د پښتنو د یوې برخې د تُرک بللو افسانه د همدغه تراکان له نامه څخه رازېږېدلې ده. د دې پر ځای چې پښتانه د تراکانو (The Thracians) یو جزء وبلل سي، هغوی ئې د تلفظي غلط فهمۍ له مخې په تُرکانو پوري تړلي دي.

کریستوفر ویبر د تراکانو قبایل په دې ډول ثبت کړي دي:

غرني قبایل عبارت دي له: سایني (Thyni)، اُدمانتي (Odomanti)، دیج (Dij)، بیسي (Bessi)، بیسالتي (Bisaltai) او ساتري (Satrai).

دښتي قبایل عبارت دي له: جیتي (Getai)، مویسي (Moesi)، اُدریسي (Odrysai). (وګورئ: هماغه اثر: ۳ مخ).

د پښتنو عنعنوي (شفاهي او تحریري) منابع د تره کي قوم درې لوی ښاخونه موسی، اود او سلیمان بللي دي (وګورئ: خورشید جهان، ۲۱۵ مخ او پښتانه د تاریخ په رڼا کښې: ۱۳۳۶ مخ). په تراکانو کې هم مویسي (Moesi) او اُدمانتي (Odomanti) ښاخونه سته.

همدغه عنعنوي منابع ساک، سهاک او تره کي قومونه یو د بل وروڼه بولي (وګ: هماغه ماخذ).

اروپایي منابعو هم ساکان او تراکان د اکا زامن (Cousin) بللي دي.

د پښتنو روایتي منابع کوتي خېل د تره کي قام یو ښاخ بولي. د تره کو کوتي او د تراکانو جیتي (Getai) شکلي شباهت لري.

زیاتره تره کي کوچیان سره ورېښتان او شنې سترګې لري او تراکان هم دغه ډول معرفي سوي دي.

زه داډه یم چې د ژبې او توکم پوهني پر تلیزې څېړنې به د دغو دوو آریایي ښاخو تر منځ ډېر نور مشابهتونه ثابت کړي. د اوس له پاره زه د دغه ډول مقایسې امکانات نه لرم او خپل نظر مې یقین ته په نژدې ګومان دروراندې کړ.

***

# د سقراط تلپاته نظريات

## دریيم فصل

**سقراط د خپل ژوند په ټول بهير کي**
**څرنگه چال چلن کاوه؟**

لیکوال: زنه فين



مترجم: واحد فقيري

لكه څنگه چي ما خپله مشاهده كړي ول ټولو هغو كسانو چي له سقراط سره ئې مدام ناسته ولاړه كوله، هغوی د سقراط د گرداوونو او بحثونو له كبله ډېر اصلاح او ښه سوي ول. ځكه سقراط هغوی نه يوازي د خبرو له لاري اصلاح كول، بلكي هغه خپله هم د يو ښه او نېک انسان ژوندی مثال وو. ما نيت كړی دئ چي په دې ليكنه كي ټول هغه شيان درج كړم چي د سقراط له عمل او خبرو څخه مي په ياد دي.

لومړی، څه چي د خدايانو د خدمت او ستايني په اړه بايد وويل سي، سقراط د الهام هدايت ته جدي پاملرنه كوله. سقراط تل هغو خلكو ته چي له ده څخه به ئې وپوښتل چي په كومه طريقه خدايانو ته قرباني او نذر وكړي، او يا د مړو د ارواحو د خوښولو له پاره بايد څه وكړي؟ هغه به مدام يو جواب لاره، او هغه دا چي هر څوک بايد د خپل وطن له دودونو سره سم عمل وكړي. نو همدا وجه وه چي سقراط په گردو مذهبي مراسمو كي په خاصه توگه

دقیق وو: ځکه هغه نه غوښتل چې هسې نه چې یو داسې کار وکړي چې د جمهوریت له دودونو او عاداتو سره توپیر ولري. برسېره پر دې، هغه تل خپلو ملګرو ته هم سپارښت کاوه چې همدا طریقه د خپلو خدایانو په دعا او عبادت کې مراعت کړي، او ویل ئې چې د منل سویو عباداتو او شعایرو سره مخالفت د خرافاتو او غرور په نفع استدلال او ګام پورته کول دي.

کله چې به سقراط خدایانو ته عبادت کاوه، یوازي به ئې هغه څه ترې غوښتل چې ښه دي، ځکه د هغه په ګومان خدایان تر موږ بهتره پوهېږي چې زموږ له پاره واقعاً څه ښه دي. سقراط ویل هغه څوک چې د سپینو، سرو، او سیاسي واک له پاره دعا کوي، هغه داسې یوه احمقانه غوښتنه کوي لکه څنګه چې د دې له پاره دعا وکړي چې په هغو لوبو، مسابقو او یا نورو شیانو کې چې اټکل ئې ناممکن وي، تاواني نه سي.

کله چې سقراط خدایانو ته خپله قرباني او نذر وړاندې کول، هغه باور نه لاره چې د هغه فقر دی د ده نذر د خدایانو له پاره ټیټ او بې ارزښته کاندي. او څرنګه چې هغه د خپلې وسې سره سم قرباني وړاندې کوله، هغه فکر کاوه چې د شتمنو په اندازه ئې قرباني کړې ده، په تېره بیا د هغو شتمنو په اندازه چې پتنوس به ئې د قیمتي نذرانو او سوغاتونو څخه ډک کړی وو. هغه باور لاره چې دا به د خدایانو له پاره یوه بې عدالتي وي چې تر ارزانو نذرونو په قیمتي تحفو باندې خوشحاله سي، ځکه له دې څخه به داسې و انګېرل سي چې د خدایانو له پاره د شریرو خلګو قرباني د ښو خلګو تر نذر زیات د منلو وړ وي. سقراط به ویل که چیري خبره دا شان وي، موږ باید د یوې شېبې زیات ژوند کولو غوښتنه و نه لرو. هغه فکر کاوه چې هیڅ شی خدای دونه نه خوشحاله او راضي کوي لکه د یوه واقعي متقي او معصوم بنده عبادت چې لوی څښتن ته ئې په اخلاص وړاندې کړي. له دې کبله ده تل دغه بیتونه تکرارول:

«هسک ته د خپل قدرت او توان سره سم قرباني او نذر وړاندې که:

ستا بخښونکي او رحیم خدایان د بل څه تمه نه لري».

هغه فکر کاوه چې د ژوندانه په ټولو لارو چارو کې تر ټولو ښه توصیه چې هغه ئې خپلو اندېوالانو ته ورکولای سي هغه دا چې هر څه د خپل وسې او توان سره سم وکړي. [بنده تر خپلې وسې پوري پر دئ. مترجم]

کله چې سقراط په دې معتقد سوی وای چې خدایان له ده څخه د یوه خاص کار کول غواړي، بیا نو پر هغه باندې پرته له همدې کار څخه بل څه کول داسې ناممکنه وه لکه چې په سفر کې هغه دې ته هڅول سوی وای چې د یوه بلد او عاقل لارښود پر ځای، چې لاره او ګودر ښه ورته معلوم وي، یو نابلد او ړوند لارښود، چې لاره ئې نه وي لېدلې، انتخاب کړي. له همدې وجې سقراط د هغو خلګو پر حماقت او جهالت باندې افسوس کاوه چې د نورو انسانانو د ملنډو د مخنیوي په غرض ئې د خدایانو د توصیه سویو اصولو سره سم ژوند نه کاوه؛ لنډه دا چې هغه ټول انساني مهارتونه او علم د خدایي الهامونو په مقابل کې بې ارزښته ګڼل.

د سقراط د ژوندانه طریقه داسې وه چې هر چا تعقیب کړې وای، البته د خدای په مرسته، هغه به حتماً داسې غښتلی اندام او عمومي روغتیا تر لاسه کړې وای چې په اسانۍ به ضرر نه وای ورسېدلی. او ها، هغه هم پرته له ډېر زیات لګښت څخه. سقراط په دونه لږو شیانو قناعت کړی وو چې که چیري بل هر

سړي مازي يو څه لاس او پښه ئې ښورولي وای ښايي د ژوند کولو له پاره ئې په کافي اندازه شيان برابر کړي وای. هغه عموماً تر هغه وخت پورې خوړل چې په خوړلو کې ئې خوند احساسوی. کله چې به پر سترخان کښېناست، هغه اچارو او مربا ته اړتيا نه لرله بلکې فقط ښې اشتيها ته. سقراط ته د څښښنګ هر ډول شی خوندور وو، ځکه هغه يوازي د تندې په وخت کې څه څښل. کله چې به يو وخت کومي مېلمستيا ته دعوت سو، هغه په ډېره اسانۍ د اضافه خوړک او څښښنګ څخه ډډه کوله. البته واقعيت دا وو چې اکثرو خلګو په دغسي مواردو کې ځان نه سوای تکيه کولای. سقراط هغو خلګو ته چې پر ځان او نفس باندي به ئې حاکميت نه لاره دا سلامشوره ورکوله چې هيڅکله د هغو شيانو څکه و نه کړي کوم چې يو موړ سړی اضافه خورک ته هڅوي، او يا يو اوبه سوی سړی اضافه څښښنګ ته هڅوي، ځکه همدا کارونه ګېډه خرابوي، د سر درد ايجادوي، او روح په عذاب او ګډوډۍ کې اچوي. هغه د ټوکو او جديت په منځ کې ويل: باور لري چې د دغو شيانو په واسطه سيرس وکړای سوای چې انسانان په خوګانو باندې بدل کړي، او اوليسيس د هغه بدلون مخه ونيوله چې د عطارد شورائې فيصله کړې وه، ځکه هغه دونه اعتدال او کنټرول لاره چې د هغوی له خورک څخه ئې ډډه کړې وه.

د مينې او عشق په ارتباط، د سقراط توصيه دا وه چې د ښکلو له يارۍ او مقاربت څخه بايد ليرې وښورو. هغه ويل چې دا ډېره مشکله ده چې هغوی ته څېرمه واوسو او د هغوی د ښايست په طلسم او لومه کې بند نه سو؛ او کله چې هغه ته وويل سول چې کريتوبولوس يو ځل د السيبياديس له زوی څخه، چې نهايت ښکلی هلک وو، مچه واخيسته، سقراط په دې باب د زنه فين سره د کريتوبولوس په حضور کې داسي بحث وکړ.

«زنه فينه، دا راته ووايه چې تر دې دمه دې د کريتوبولوس په اړه څه نظر لاره؟ ايا تا هغه د اعتدالي او معقولو خلګو په جمله کې حسباباوه؛ او که د مفسدو او بې احتياطه کسانو په کتار کې؟» زنه فين په جواب کې وويل: «ما هغه تل د يوه متقي او محتاط سړي په حيث پېژندی». سقراط ورغبرګه کړه: «خپل نظر بدل کړه، او تر هغه چائې لا عجول او بېباکه وګڼه چې پر راکښولو تورو باندې وردانګي او يا سره اور ته ځان اچوي». زنه فين وويل: «تا په هغه کې څه لېدلي دي چې د هغه په باب داسي خبري کوې؟» سقراط په جواب کې وويل: «ولي، هغه دونه بې احتياط وو چې د السيبياديس له زوی څخه ئې مچه واخيسته، او ته پوهېږې چې هغه نهايت ښکلي او فريبا هلک دئ». زنه فين ور غبرګه کړه: «ايا همدا ټوله خبره ده؟ زه فکر کوم چې زه به پخپله خوښه او رضا همدا شان خطر ته ځان ورکړم کوم ته چې هغه ځان ورکړی وو». سقراط په جواب کې وويل: «های های، ته يو بدبخته سړی يې!» سقراط ادامه ورکړه: «ايا ته پوهېږې چې د يوه ښايسته مخ له مچولو څخه وروسته په تا څه کېږي؟ ايا ته خپله ازادي له لاسه نه ورکوې؟ ايا ته مريی کېږې نه؟ ايا ته د يوې خوږې ګناه د رانيولو له پاره جګو لګښتونو ته غاړه نه ږدې؟ ايا ته خپل ځان په يوه داسي حالت کې نه وينې چې د ښه کولو څخه عاجز کېږې، او ايا ته خپل ټول وخت او انرژي په داسي چاري باندي نه لګوې چې بايد ترې کرکه وکړې؟ البته په دې شرط که چيري ستا سد په سر کې وای». زنه فين چيغه کړه: « يا لويه خدايه! دونه طاقت او

اهمیت یوې مچې ته ورکول!» سقراط
ورغبرګه کړه: «ایا دې خبرې ته حیران کړې؟
ایا هلته داسې کوچني حیوانات نسته چې
نېښ ئې داسې زهرجن دئ چې د زیات درد
سبب ګرځي، او حتی په ځینو مواردو کې د
حواسو د بایللو سبب هم ګرځي؟» زنه فین
وویل: «زه په دې خبره باندې پوره واقف یم،
خو دغه حیوانات له نېښ وهلو څخه وروسته
څه زهر پرېږدي او خپله ځي». سقراط زیاته
کړه: «اوه، احمقه، ته فکر کوې چې په مینه
کې خوله اخیستل زهرجنه نه ده، ځکه ته ئې
زهر نه وینې او یا ئې نه احساسوې؟ پوه سه
چې یو ښکلی انسان تر لړم خطرناکه دئ،
ځکه لړم له تماس څخه پرته وهل نه کا، مګر
ښایست له لیرې د زړونو ویشتل کا. بل خوا،
ښکلا ته چې له هر څونه لیرې ځایه وګورو،
خپل زهر رارسولای سي، او زموږ قضاوت او
عقل را اولټه او خرابولای سي. ښایي له همدې
وجې وي چې عاشقان او مینه په غشي او لینده
باندې ترسیمېږي، ځکه یوه ښکلې څېره موږ
له لیرې خپل لور ته ورکشوي. زنه فینه، زه تا
ته مشوره درکوم کله چې یو ښایسته مخ ووینې
ترې لیرې تښته، او پام چې شا ته قطعاً و نه
ګورې! او کریتوبولوسه، زه فکر کوم چې ته
باید د یوه کال له پاره ځان غیب کړې، ستا د
ټپ د جوړېدو له پاره به دا اوږد وخت نه وي».

د هغو له پاره چې د مینې د کشش په
مقابل کې کافي مقاومت نه لري، سقراط فکر
کاوه چې هغوی باید عشق داسې یو عمل
وګڼي چې که چیرې د جسمي ضرورت یوه
برخه نه وای، روح باید هیڅکله هم رضایت
ورسره نه وای ښودلی. اوس نو، که څه هم
مینه یوه جسمي اړتیا ده، خو باید پام وکړو
چې روحیي اضطراب او ناقراري راپېښه نه
کړي. څرنګه چې د سقراط څېره ټولو خلګو ته
معلومه وه، هغه په داسې اسانۍ سره کولای
سوای چې د ښکلو له دام څخه ځان بچ کې،
لکه څنګه چې د نورو خلګو له پاره د کرغېړنو
شیانو څخه د ځان لیرې کول اسانه وي.

موږ ولیدل چې په ژوندانه کې د
خوړنګ، څښنګ، او د مینې په برخه کې د
سقراط طریقه څرنګه وه. هغه باور لاره چې د
همدغو لذتونو څخه ئې دونه خوند اخیستی
دئ لکه هغو کسانو چې د دې لذتونو په لاسته
راوړلو کې ئې خورا زیات کړاوونه ګاللي وي؛
مګر په دې تفاوت چې د هغوی په شان ئې روح
د بار بار توبو د ماتولو شرم او پښېمانۍ نه وه په
عذاب کړې.

نور بیا...

**لیکوال: جبران خلیل جبران**
**ژباړونکی: احمدالله څرګند**

## گورکښ

یو وخت مې خپله یوه مړه اروا
ښخوله، ګورکیندونکی رانژدې سو او راته
ئې وویل: "دلته ډېر خلک د مړي ښخولو
ته راځي، خو په ټولو کې ته راته ګران یې".

ما وویل: "دا ستاسو مینه ده، خو زه
موولي خوښ یم".

"دا ځکه چې،" هغه وویل: "نور په
ژړا راځي او په ژړا ځي، خو یوازې ته یې
چې په خندا راځې او په خندا ځې".

***

# پېيلي مرغلري

چلوونکی: خلیل سروري

شمس الدین کاکړ

## غزل

محبت مي تر سر وکيښ تار د زلفو
پر صفحه د زړه مي پروت غبار د زلفو
و هر لور ته چي مي بيايي پسې درومم
چي مي ورکړ په لاس خپل اختيار د زلفو
که و مځکي ته چي زور وهي ګرم نه دئ
کړي و خاورو، وته ميل مار د زلفو
سپينه ورځ چي توره شپه راته ښکارېږي
پروت پر سترګو دئ زما غبار د زلفو
په خُتن کي به ارزان کا نرخ د مشکو
که خوبان کړي آراسته بازار د زلفو
خوله مي چوي د نافې په شان خوشبويه
چي په هر ساعت کوم ګفتار د زلفو
تور سنبل شي له خزانه پروکي پروکي
له خزانه وي ايمن ګلزار د زلفو
په تور مار باندي چي لاس وهي قهرېږي
ډمي بس کړه په شانه سينګار د زلفو
شيخ صنعان که قبول کفر کړ ګرم نه وو
تر ګردن يې شو حلقه زنار د زلفو
داتور بخت د "**شمس الدين**" به کله سپين شي
چي پرې پرېوته سياهي د يار د زلفو

میرزا حنان بارکزی

## غزل

بيا اخته سوم په بلا د تورو زلفو
بلا څه، په اژدها د تورو زلفو

تر بغل لاندي يې ګنج د مخ ساتلی
را معلوم سوه دا غلا د تورو زلفو

په خُتن کي يې د مشکو قدر کم کړ
څه به وايم له سودا د تورو زلفو

په پرشان صورت کوي د مخ ساتنه
راسه وګوره وفا د تورو زلفو

کېږې ناستي دي په خيال پهلو و لمر ته
څه به وايم له هوا د تورو زلفو

تر هر خم يې شا و خوا آفتاب ځلېږي
په شپه وګوره رڼا د تورو زلفو

د جنون مار ورته غاښ چيچي له درده
چي "**حنان**" کوي انشاء د تورو زلفو

رحمان بابا

## غزل

هیڅوک مه شه ګرفتار د تورو زلفو
مه اسیر شه په کفار د تورو زلفو

هم په شان د تورو زلفو به پرېشان وي
هر چي کاندي انتظار د تورو زلفو
د محشر په عالم کله قراري وي
څوک به څه غواړي قرار د تورو زلفو
څو یې صبح د قیامت دمیده نه شي
ورځ به نه شي شب تار د تورو زلفو
مګر شمع د سپین مخ شي باندي بله
ګنه نشته بل انوار د تورو زلفو
تار په تار کا د عاشق د خاطر خونه
چي حلقې شي تار په تار د تورو زلفو
چي تمام جهان یې نښتی دئ په دام کي
څوک به څه کاندي انکار د تورو زلفو
زه له کوم، یوه کمنده سر وکاړم
کمندونه دي هزار د تورو زلفو
هومره زړونه یې پېیلي په هر تار دي
چي تسبح کړه خدای زنار د تورو زلفو
په تندي د محتسب کا دُره ماته
چي پرې راشي دُره دار د تورو زلفو
ملک د هند او د حبش یې واړه زېر کړ
چي پیدا شو شهریار د تورو زلفو
ښامارانو غونډي ګرځي په ګنجونو
نه شي هیڅ په زړه کې ډار د تورو زلفو
که بل مار چیچل په لاسو یا پر پښو کا
په زړه خوله لګوي مار د تورو زلفو

د "**رحمان**" تر قلم مښک او عنبر ووري
چي آغاز یې کړ اشعار د تورو زلفو

عبدالله محزون پوپلزی

## غزل

جلوه ګر او سه همېش د یار د زلفو
مونده نه سي په لکو یو تار د زلفو
بې منصوره دا انعام پر بل نه ښایي
هر ګردن نه دئ لایق په دار د زلفو
تر قیامته خوشحالي ده پر حرامه
کې په غاړه سو دلې آزار د زلفو
بوی د زلفو به ئې ووړ خراج د مشکو
که نګار وکې پر چین ګذار د زلفو
د ښهمار نیوه آسان پر هغه کس دي
که ئې لاندي تر هوده کې مار د زلفو
لکه مشک چي پر ګلاب وي او رېدلي
چي خط ونیوه په غېبر کنار د زلفو
په بهنه ئې غولېدلی (دئ) ګرم نه دئ
"**عبدالله**" غریب چي وړي ناتار د زلفو

ګل محمد د مالګیر

## غزل

سر ګردانه پرېشان کړم د یار زلفو
مجنون طوره خوار حیران کړم د یار زلفو
چي یو غشی د غم وي را باندي نښلي
څه کړم زه د غم نښان کړم د یار زلفو
له آهو نه مي تل بوی د کباب ځینه
سینه سوې دل بریان کړم د یار زلفو
که د صبر کښتۍ راکړې چي غرق نه سم
ګنم زه غریب طوفان کړم د یار زلفو
نور وګړي وینم تل مدام خندان دي
تنها زه غریب ګریان کړم د یار زلفو
پاڅه عرض له زلفو کړه د یار پر شونډو
"**ګل محمده**" درست ویران کړم د یار زلفو

# هنر او ادب

**چلوونکی: پردېس کندهاری**

استاد احمد صمیم

## غزل

زه مشکل جمع مشکل یم
د مشکل د کوره راغلم

بل مشکل کور ته روان یم
او داستان ئې هم مشکل دئ
یو مشکل که چیري ښخ سي
بل مشکل ئې سر ته ناست وي

هر مشکل له مشکل زېږي
او جبران ئې هم مشکل دئ

دا پر څه مشکل اوښتی
لوی مشکل خو پکښې دا دئ

چي سکوت ځني مشکل دئ
او بیان ئې هم مشکل دئ
هم ئې حل راته مشکل دئ
که حل نه سي هم مشکل دئ

زه "**صمیمه**" د مشکل شعر یم
او عنوان ئې هم مشکل دئ

## لر او بر

د هلمند د سیند او باز یم
په اټک کي به لمبېږم

چي خیبر ئې بابا بولي
په هغه بابا نازېږم

دا اوریخ له اوره ډکه
اوس به نور هم تازه کېږم

زه یو لمر د آزادۍ یم
د شمشاد پر غره ځلېږ

زه خټک او افرېدی یم
د تیرا پر غره اوسېږم

زه جونګړه د مومندو
په رحمان باندي نازېږم

ماشوخېل حمید ته راغلم
په خوشال ئې خوشالېږ

زه "**صمیم**" د لر او بر یم
په هر غم ئې شریک کېږم

علي محمد احسان / ميوند

## غزل

د ميني درد چي کله راسي زما د زړه پر درگاه
رنځوري اوښکي مي راتوی سي د باڼه پر درگاه

زه چي په چا پسي شپه ويښه تر سهاره کړمه
د خيال نيلی مي تل کړېږي د هغه پر درگاه
د سترگو رپ کي تصور د يار تر کلي يووړم
لاس مي نيولی وو د يار د گرېوانه پر درگاه
غليمه ستا هم اميدونه راته شنډ ښکارېږي
خوړلي چا نه ده ډېخي د پښتانه پر درگاه

د شعر ځنځير که دي د زړه دروازه وشرنگول
"**احسانه**" وي که ښه راغلاست د مېلمانه پر درگاه

عزت الله شمشاد / ميوند

## غزل

ستا په درد کي درومي په لېمو کي کوڅې جوړي کي
اوښکي سرگردانه گرېوانو کي کوڅې جوړي کي

ستا د نه شتون وخت يا ره وجود مي شوړوي داسي
سم لکه ناوه چي دېوالو کي کوڅې جوړي کي

نرم درد يې گوره دومره زور او پياوړتيا لري
دا لکه اوبه چي سم په غرو کي کوڅې جوړي کي

کله به چناره خپل انځور دوی پکښي وويني
کله به بيا پېغلي په چينو کي کوڅې جوړي کي

داسي به تر څو لا له يو بله سترگي اړوو
کله به "**شمشاده**" زړه په زړو کي کوڅې جوړي کي

بشير احمد بشارت

## غزل

لاسو کي څراغونه په لېمو کي څراغونه
قدم پر قدم وړمه په تيارو کي څراغونه
د لمر تر رخصت وروسته به مي شمع په کار نه سي
ساتلي څکه ستورو په څېرو کي څراغونه
د زړه د ترنم کتاب مي ډک له رونو تورو
د وړانگو شال راوړي په لفظو کي څراغونه
د ميني په مکتب کي به د زړونو ډالۍ زده کړو
چي لولو په سرليک او په درسو کي څراغونه
که يو ځلي د گونگ حالت ژباړونکی راپيدا سو
لگېږي به زما او ستا په زړو کي څراغونه
که راسي د سپرلي پېغله د پاڼو په جامو کي
څېره، څېره به گل کړي په کتو کي څراغونه
دا وخت به "**بشارته!**" د کمال په عطرو پر ېولو
هنر که پکښي پر ېولي په فکرو کي څراغونه

محبوب مشتاق

## غزل

زه مېلمه سومه د گور تا کډه وکړه
دا دئ سوځمه په اور تا کډه وکړه

په ټول ژوند کي په ښه راغلي ملگرې
دئ راپاته ستا پېغور تا کډه وکړه
چي ځواني مي وه خاني مي وه دلې وې
چي مي ختم سودا زور تا کډه وکړه
بل به څوک زما د هيلو قدر وکړي
ته هم ولاړې گراني مور تا کډه وکړه
د ورغوي خيري دا دي څه را وکړه
ما مي مړ کړ درته ورور تا کډه وکړه

تا خو ښکل کړمه "**مشتاقه**" په تلو تلو کي
را دي نه کړ زما پور تا کډه کړه

عبدالظاهر شرک

## بېره

ساقي بيا به دي ميناوي که به نه وي؟
د ښايسته وو به نخاوي که به نه وي؟
د خزان تندي سېلۍ ته وار خطا يم
سرې غوټۍ به په خنداوي که به نه وي؟
په نشو نشو مې ځان در ته مجنون کې
بيا به خدای خبر ليلاوي که به نه وي؟
د دښمن خونيني ستر ګي مې ليدلي
زما وطن به په خنداوي که به نه وي؟
د آسمان خړي او ريځي راته ګوري
دا سپوږمۍ به همنواوي که به نه وي؟
برايي په خوب کې تږي خماري وم
چي ډک جام به ستا د خواوي که به نه وي؟
د جفا له توره د ښه مې زړه رېږدي
راسره به بيا وفاوي که به نه وي؟
سور ښامار د ليري ليري را ښکار ږي
زما وطن کې به ښکلاوي که به نه وي؟

رحمت الله رحمتي

## مينه

مينه هر کلي و چا ته وايي چا ته نه وايي
خپل راز هر سړي و چا ته وايي چا ته نه وايي
ښکلي چي د خپل حسن صفت کوي په خپله خوله
کېږي شرمېږي و چا ته وايي چا ته نه وايي
کله چي بهار راځي په درختو کي ګلان ايږدي
زيري پسرلي و چاته وايي چا ته نه وايي
ژبه ئې ګونګې سه چي افغان ته به غلام وايي
ړوند دي سي زلمی و چا ته وايي چا ته نه وايي
وايي خدای دي راوله قدم دي پر لېمو ږدمه
دا دبل مريي و چا ته وايي چا ته نه وايي
چي کله **رحمتي** خپله ديدن د ښکلو وغواړي
ګرځي ليوني و چا ته وايي چا ته نه وايي

عبدالله ستوری

## نعت شريف

ستا هر حديث کي د حکمت لوی خزانې پټې دي
دې خزانو کې ځومره ښکلي دُردانې پټې دي

روڼه هينداره يې د ژوند د سينګارو نو آغا
ستا په هنر کې د رنګونو اشيانې پټې دي
په تاريخپاڼه کي تر تا ښه بېلګه نسته ګرانه
که په تاريخ کې د قرنونو زمانې پټې دي
موږ که د ساينس په روڼا نوي کشفيات کړي دي
ستا په کلام کې دغه ټولي نښانې پټې دي

د زمانو رسينه پروت ستا د وينا لونګين
پکښې کي "**ستوري**" هنرمندي ترانې پټې دي

## غزل

ستا ښايست غزل غزل او ستا ښکلا غزل غزل
ګرانه ته غزل غزل يې ستا حيا غزل غزل

ستا غزالي ستر ګي دواړي د غزل په نشو ښکلي
ستا نظر غزل غزل او ستا ادا غزل غزل
ستا د ځنو ماښامونه د رنګين امن ځپې دي
هر ماښام غزل غزل او هر سبا غزل غزل
ستا د شونډو پر قلفانو د مسکا د کيلۍ شرنګ دئ
دا شرنګا غزل غزل او دا مسکا غزل غزل
زه د زړه په جزيره کي ستا د ميني جشن لمانځم
هر غزل غزل غزل او هره خوا غزل غزل

څومره ستره لورينه تا پر "**ستوري**" باندي کړې
وايي ستا غزل غزل او ستا ثنا غزل غزل

عطامحمد فضلي

## مناجات

یو ئې دوښمن ورسر نګون کړې خدایه
بل سر بلنده مې پښتون کړې خدایه
چې پښتني خوندي نور و نه ژاړي
ختم د جنګ د غم مضمون کړې خدایه
نور د دښمن لاسونه مات غواړمه
د پښتنو ګل، ګل ژوندون کړې خدایه
بیا جنازې مو پر کوڅه را نه سي
د خوشحالۍ بیرغ راستون کړې خدایه
چې پېغلې ګرځي په شرعي لباس کې
داسې مو هر محفل زرغون کړې خدایه
چې مو هر غر سي په ښېمو ښایسته
بیرته هغه رمې او شپون کړې خدایه

سعید وصال / کاناډا

## آینې ښکاري خواشیني

د غبار لباس ترې ولوېد
بیا هم نه خاندي څېره ته
آینې ښکاري خواشیني

له سکوته ور جلا سم
زبوري جوړښت کې نغښتي
ستا لیمې ښکاري خواشیني

سر تر نوکه توبه، هیڅ کې
خو د حسن درخانۍ ته
زمونږ توبې ښکاري خواشیني

په نارو مې نه دربړي
د فتنو منتر وهلي
غلبلې ښکاري خواشیني

د دې نن له کوږبختیه
هر پرون پر "**وصال**" خاندي
زمانې ښکاري خواشیني

حبیب الله قلم مل

## غزل

احساس سرتېری دئ د درد په توپک زړه ښکاروي
چې لږ څه پوهه لري دا ښکاري هغه ښکاروي

د قدرتونو په قانون کې یوه دا ماده ده
چې زورور دي د کمزوري ځیګر نه ښکاروي
د ستونزو ړمونځ مې ړمونځوي وربښته د عمر د سر
وایې د زلفو څو ماران په دې نیزه ښکاروي
د تکلیف غشي به نور ګرځوم د صبر په سپر
ځکه دا غشي د بې صبرو حوصله ښکاروي

د شاعرۍ د مسؤلیت پېټی تر هغه وړمه
چې دا اجل افي ښامار دا خزانه ښکاروي

عطامحمد بیاباني

## غزل

اوښکې چې پر مخ باندې راڅوی کمه
تا به د خپګان په معنا پوی کمه

موري که دي مچ پر تندي نه کړمه
ماته به په کانو ککرۍ کمه

ته که له دښمن څخه په تېښته وې
پټ به دي بغل ته لکه سوی کمه

دا ځل که ملاله راژوندۍ سوله
بګړۍ به د خپل سر ورته ډالۍ کمه

ځمه و دوبۍ ته اجازه راکه
پیدا به دي ولور په مزدورۍ کمه

قربان که "**بیاباني**" پر وطن نه سولې
وچ به دي پر بام لکه بېنډۍ کمه

# د بنګړو شرنګ

چلوونکې: مینه انتظار

د مینې انتظار دوې غزلې

## غزل

اوه ستا له هجرانه زړه مې وچاود بد
وچاود بد جانانه زړه مې وچاود بد
ستا په جنتي غېږ کې سکون راکه
ډېره یم ستومانه زړه مې وچاود بد
مه شنه د زړه زخم مې مه شنه
وتې یم له توانه زړه مې وچاود بد
کاشکې مې یو ځل ورته ویلې وای
زما د زړه درمانه زړه مې وچاود بد
نور ئې "**انتظار**" کولای نه سمه
پرې مې ږده ارمانه زړه مې وچاود بد

## غزل

ځلیرویشتم خزان ته رامې وړه په بېره ځواني
ما مې تر درویشت پسرلو کړله راتېره ځواني
مرګیه کله خو دې هم په هېره و نه ویل
چې تر لحده دې راوړم له حده تېره ځواني
کلونه پس مې ستا مزار ته اوښکې وڅڅېدې
کلونه پس مې راپه یاده سوله هېره ځواني
له کومه وخته چې راوتې یمه ستا په تکل
له هغه وخته مې ملګرې ده سرتېره ځواني
تا راته نه ویل چې یې د کوه قاف شاپېرۍ؟
تا راته ول، چې: **میني**! ښکلې دې ده ډېره ځواني

د ثریا حمیدي افغان دوې غزلې

## غزل

دا زړه مې ستا د عشق په اور سوځېږي کله کله
چې اوښکې مې له ستر ګو څه څڅېږي کله کله
دا زه چې د وصال په شپه هم ژاړم په سلګو یم
له ډېري خوښۍ هم غمونه زېږي کله کله
دا نه چې د اظهار په وخت تنها زه وارخطا یم
پوهېږم چې وجود ستا هم لړزېږي کله کله
منم چې په زړه کلک دئ خو پر تا باندې مین دئ
رقیب دې هم په مینه کې ژړېږي کله کله
نو پوه سم "**ثریا**" چې به مې هیلې پوره نه سي
ګلاب ګلاب ځواني چې مې رژېږي کله کله

## غزل

د سیند په شان مې اوښکې د ګرېوان پر طرف ولاړې
د هیلو جنازې مې د ارمان پر طرف ولاړې
په دې هیله چې یار به پرې یو ځل کتنه وکړي
زما د زړه لمبې نن د جانان پر طرف ولاړې
هیڅا قبولې نه کړلې هیڅا نه اور بدلې
زما د غم سندرې د اسمان پر طرف ولاړې
بېشکه چې دې زړه کې زما مینه پښتنه وه
بېلتون دې قبول نه کړ بل جهان پر طرف ولاړې
انګار ته ستا د هجر "**ثریا**" ده ورلو بدلې
ایرې د تور اور بل ئې د هجران پر طرف ولاړې

د زېبا اوربل دوې غزلې

## غزل

زړه مـــې پـــه والله جانانـــه درد کـــوي
مــه څــه بــې لــه تــا جانانــه درد کــوي

کومــه ورځ چــې و نــه ژاړم ســتا پــه غــم
ســرې ســترګې زمــا جانانــه درد کــوي
اوس چې مې زخمونه چړيکې و نيسي
هـــر زخـــم جـــدا جانانـــه درد کـــوي
ســتا د نامــه ذکــر مــې ډېــر کــړی دئ
ژبــه مـــې بيـــا بيـــا جانانـــه درد کـــوي

دا "**زېبــا**" غـــزل دي نظـــر ســـوې ده
شـوندو کـې چـې سـتا جانانه درد کـوي

## غزل

پـه ژړا بـه ټولـه ښـار سـي کـه تـه ولاړې
ډېر پيکه بـه کنـدهار سـي کـه تـه ولاړې

زما خوښي بـه پـر بـل لـوري وکـړي کډه
د غمونـو بـه مـې وار سـي کـه تـه ولاړې
ستا بېلتون بـه مـې پـه کـاڼو بانـدې ولـې
د زړه سر بـه مـې پرهار سـي کـه تـه ولاړې
ستا پـه يـاد کـې بـه لـيکم د درد شـعرونه
زمـا بـه دغـه کاروبـار سـي کـه تـه ولاړې

پر "**اوربل**" بـه مـې "**زېبا**" کلونـه نـه وي
راڅـه پاتـه بـه سينګار سـي کـه تـه ولاړې

د فرشتې مرسل دوې غزلې

## غزل

عجيبــه غونــدې دســتور د دې دنيــا دئ
بېګانه کس بـه وي خوږ درتـه تـر ځـان سـي

د زړګــي کوڅــو کــې ګرځــي بــې تپوســه
ښکلي ډېر وي خو يو يو پکښې جانان سي
لا ليــدلی ئــې د ژونــد پــسرلی نــه وي
د بــارودو پــه لوګــو بانــدې خــزان ســي
څه زاهد، څه نصيحت څه بې تسبيح وي
چې و شرنګ ته د بنګړو تېر تر ايمان سي

"**فرشته**" بـه ئـې تـل سـتايي پـه شـعرو کـې
چــې پــر مينــه د وطــن بانــدې قربــان ســي

## غزل

د هجر ژرندې رانـه وايستل رانجـه د سترګو
دا چې مې توی سولې ګرېوان لره اوبه د سترګو

ته لاس پر کنبېږده نذرانه د مينې څه شي غواړې؟
تن غواړي، روح غواړي، که غواړې مې بانه د سترګو

زه لا تر اوسه ستا د زړه کړنګ تـه نـه ولوېدم
ما په خندا خندا کړه چار تر تا هر څه د سترګو

د ژوند تيارو کې مو سوه ورکه د رونا "**فرشته**"
تا پرې پېرزو نه کړه يو څلي هم ډېوه د سترګو

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آریا

# نوبل جایزه وړونکي ادیبان

# هوسې ایچگارای

(Jose Echegaray)

(۱۹اپریل ۱۸۳۲م – ۱۴ سپتمبر ۱۹۱۶م)

**(پنځمه برخه)**

د نونسمي پېړۍ د اتمي لسيزي دغه هسپانوي ډرامه لیکوال ته په ۱۹۰۴ م کال له فرېډرک مسترال (Frederic Mistral) سره په شریکه نوبل ادبي جایزه ورکړه سوه.

ایچگارای په دوه ویشت کلني کي په ډرامه لیکنه شروع وکړه او په خپل ټول تخلیقي ژوند کي ئې خپل سبک وساته. د ډرامه لیکوال په توگه د نوموړي د شهرت یوه لویه وجه په ډرامه لیکنه کي د لوړو تخنیکونو کارول وو. د ځینو نسبي ساده میلو ډراماتیکو پلاټونو په کارولو سره هم هغه د خپلو نندارچیانو پاملرنه جلب کړه.

"د ایچگارای هم د خپلو اسلافو غوندي د منازعاتو د وړاندي کولو هنر زده وو. هغه له بېلابېلو مزاجونو او افکارو سره دلچسپي لرله. نوموړي هم د خپلو اسلافو غوندي د وجدان د نهایي پېچلو حالتونو له مطالعې څخه خوند اخیست. هغه پر دې قادره وو، چي څنگه په خپلو لیدونکو کي د ببري او رحم احساسات پیدا کړي. همدا کمال د تراژیدۍ معراج دئ. د پخوانیو سترو هسپانوي هنرمندانو غوندي د نوموړي په لیکنه کي هم دېر ژوندی خیال او

د سپېڅلي هنري احساس ګډ تاثيرات ليدل کېږي"[1].

هوسې ايچګاراى په ميډرډ کې پيدا سو. وروسته دغه کورنۍ ميورشيا (Murcia) ته ولاړه. په ميورشيا کې د نوموړي پلار د يوناني ژبې پروفيسر وو. په څورلس کلنۍ کې ايچګاراى ميډرډ ته بېرته راغلی. په ۱۸۵۳م کې نوموړی له (Escuela de Caminos) څخه فارغ سو او په همدې ځاى کې د رياضي پروفيسر مقرر سو. هغه د رياضي په برخه کې هم څېړنيزي مقالې چاپ کړې او د خپل مهال په لويو هسپانوي رياضي پوهانو کې وشمېرل سو. هغه تر ۱۸٦۸م پوري انجنيري ووېل او پر يو شمېر دولتي چوکيو پاته سو. په ۱۸٦۹م کې نوموړی د هسپانوي پارلمان غړی وټاکل سو. همدارنګه هغه د سپين (هسپانوي) بانک په جوړولو کې هم مهم رول ادا کړ. په ۱۸٦٦م؟ کې هغه د ميډرډ اکاډيمۍ غړی وټاکل سو. په ۱۸۷۴م کې چې کله د



نوموړي لومړۍ ډرامه (El Libro Talonario) ولوبول سوه نو هغه دو څلوېښت کلن وو. دغه ډرامه د پاريس پر موقته جلاوطنۍ باندي ليکل سوې وه. په اوايلو کې نوموړي د خپل اصلي نوم پر ځاى په قلمي نوم ليکنه کول. که څه هم هغه په وروستيو درو لسيزو کې په سياسي چارو ډېر بوخت وو، خو بيا ئې هم ډرامه ليکني ته وخت ايستی. هغه به په کال کې شاوخوا دوې ډرامې ليکلې. په ۱۸۷۴م کې (La Esposa Del Vengador)، په ۱۸۷۵م کې (En Puno De Espada)او په ۱۸۷۷م کې (O Lucura O Santidad) لوبول سويو ډرامو ئې ډېر شهرت پيدا کی. کله چې په ۱۸۹۵م کې د نوموړي ډرامې په انګليسي ترجمه سوې نو هغه نړيوال شهرت پيدا کړ.

---

[1] د نوبل جايزې د ورکړې د غونډې له وينا څخه اقتباس.

د هغه د يوې ډرامې کرکټر لورينزو اويندانو (Lorenzo Avendano) د جايداد د ميراث يوه لويه وصيت نامه پيدا کوي. کله چې هغه په دې پوهيږي، چې د وصيت نامې اصلي حقدار دی نه دئ، نو هغه په دې هڅه کې کيږي، چې هغه تر خپل حقداره ورسوي خو د هغه حريص خپلوان له نوموړي سره موافق نه وي. هغوی د دې له پاره چې جايداد تر لاسه کړي، نو هغه مرستون ته لېږي.

ايچګاري له ستر نارويژي ډرامه ليکوال هنريک ابسن څخه له متاثره کېدو وروسته پر ټولنيزو مسايلو ليکنې ته مخه کوي. په ۱۸۹۲م کې نوموړي د (El Hijo De Don Juan) په نامه ډرامه وړاندې کړه. دغه ډرامه د ابسن د (The Ghost) نومې ډرامې تر اثر لاندې ليکل سوې وه. د بې ځايه اوازو د مخربو پايلو پر موضوع ليکل سوې ډرامه (The Great Galeoto) د نوموړي هغه ډرامه ده، چې تر ټولو زيات مينه وال لري. په دې ډرامه کې يوه اوازه لوېږي، چې يو ځوان ليکوال ارنسټو (Ernesto) د ډون جوليان (Don Julian) له مېرمني ټيوډورا (Teodira) سره د خپلو اړيکو پر بنسټ يوه ډرامه ليکلې ده. ډون جوليان چې د خپلې مېرمنې په دفاع کې له وايکونټ[2] (Viscount) سره د ډويل[3] (Doel) جګړه کوي له دې امله مري، چې د نوموړي پر دغه اوازه باور راځي. له دې وروسته ارنسټو وايکونټ وژني او له ټيوډورا سره ژوند ته ادامه ورکوي.

"که څه هم خلکو د ايچګاراى له ډرامو سره ډېره مينه لرله، خو د هغه مهال روشنفکرانو او ليکوالو د نوموړي پر احساساتي انداز او مبالغې باندې نيوکې کولې. دوی په دې نظر ول، چې په دې ډول ډرامه کې تصنع رامنځ ته کېږي. ډېر کره کتونکي په دې نظر دي، چې د نوموړي په ډرامو کې د فرانسوي رياليزم او ابسن ګڼ تاثيرات ليدل کېږي. د نوموړي ډرامې د معاصر ذوق استازي دي. له همدې امله د تاريخي ارزښت وړ دي. البته دا هم بايد وويل سي، چې د نننې عصر د ليدونکو له پاره هيڅ دلچسپي پکښې نسته"[4].

د نونسمې پېړۍ له اوومې لسيزې څخه بيا تر هغه وخته پورې چې نوموړي ته نوبل جايزه ورکول کېده، هغه تر ټولو ممتاز هسپانوی ډرامه ليکوال بلل کېدی. په ۱۸۹۴م کې هغه د هسپانيې د رايل اکاډيمۍ غړی وټاکل سو. د ايچګاراى اخلافو د نوموړي ډرامې د تېر وخت شيان وبلل. په ۱۹۱۲م کې د هسپانيې باچا دوولسم الفانسو (Alfonso XII) هغه ته (Order of the Golden Fleece) ورکړ. هغه په ۱۴ سپټمبر ۱۹۱٦ م کې په ميډورډ کې مړ سو، خو د جاسنټو بيناوينټې (Jacinto Benaente) غوندې هنرمندو ليکوالو له پاره ئې لار هواره کړه.

***

---

[2] اشرافي لقب.

[3] ډويل د دوه په دوه جګړې هغه ډول دئ، چې د يوې پرېکړې د نهايي کېدو په موخه د دوو حريفانو له خوا تر سره کېده، په دې جګړه کې يوازې له توري څخه کار اخيستل کېدی، د جګړې په پای کې پرېکړه د غالب په ګټه او د مغلوب په تاوان تر سره کېده

[4] د (Mcgraw Hill Encyclopedia of World Drama) څخه اقتباس.

# (۱۰۰)

# نړیوال شخصیتونه

*****


لیکوال:
مایکل هارټ

اردو ژباړن:
محمدعاصم بټ

پښتو ژباړن:
عبدالنافع ثنا


## (۱۵)

## حضرت موسی علیه السلام

(۱۵۰۰ ق م)

د تاریخ په اوږدو کي غالباً تر عبراني پیغمبر حضرت موسی علیه السلام ډېر شاید د چا دومره پراخ هرکلی نه وي سوی. د وخت په تېرېدلو سره د ده شهرت او پیروان ورخ تر بلي ډېر سول. داسي انګېرل کېږي چي په دیارلسمه پېړۍ (ق م) کي کله چي دوهم ریمس چي د یوه نظر له مخي د اکسوډس په ښار کي فرعون وو او په ۱۲۳۷ ق م کي وفات سو، وزېږېد. د ده د ژوند پر مهال، لکه څنګه چي له اکسوډس (د تورات دوهم کتاب "ژباړن") کتاب څخه څرګندېږي، ډېری عبرانیان د ده له کړنلارو څخه ناخوښه ول. تر پنځو پېړیو پوري حضرت موسی علیه السلام د ټولو عبرانیانو له پاره یو منلی څوک وو. تر ۵۰۰ م پوري د ده شهرت د عیسائیت سره یو ځای په ټوله اروپا کي خپور سو. یوه پېړۍ وروسته حضرت محمد صلی الله علیه وسلم حضرت موسی علیه السلام د یو رښتیني پیغمبر په توګه ومانه او د اسلام له غوړېدو سره یو ځای حضرت موسی علیه السلام هم د مصر په ګډون په ټوله مسلمانه نړۍ کي د ستایني وړ یو شخص په توګه مطرح سو. نن له دوه دېرش پېړیو وروسته حضرت موسی علیه السلام د یهودیانو، عیسائیانو او مسلمانانو له پاره په یو ډول سپېڅلی دئ. همداراز یو لوی شمېر لادریان (Agnostics) هم نوموړي ته په درناوي قایل دي. د عامه پوهاوي د نوو وسیلو په مټ موږ نن د پخوا په پرتله د ده په

اړه ښه پوهېږو. د حضرت موسی علیه السلام د دومره شهرت سره سره موږ د ده د ژوند په اړه په ښه توګه نه پوهېږو. داسي ګومان کېږي (چي ډېر پوهان ئې نه مني) چي موسی علیه السلام د مصر اوسېدونکی وو او نوم ئې عبراني نه بلکي مصری دئ. (چي مانا ئې کوچنی یا زوی دئ او د مصر د ډېرو فرعونانو د نوم برخه هم وو). د حضرت موسی علیه السلام په اړه د پخوانۍ لوزنامې پر حکایتونو باور کول ستونزمن دي چي ډېری ئې د معجزاتو کیسې دي لکه د لګېدونکو ایرو کیسه او یا دا چي موسی علیه السلام له خپلي لکړۍ څخه مار جوړ کړ. دا په خپل ذات کي معجزې دي لکه د بیلګي په توګه باید د هري خبري د منلو له پاره ئې د عقیدې په مټ باور وکړې لکه دا چي موسی علیه السلام چي د اکسوډس (د بني اسرائیلو یومخیز مهاجرت"ژباړن") په وخت کي د څلورو اتیا کالو وو، نور څلوېښت کاله ئې عبرانیان له ځان سره کړي ول او پر صحرا ګرځېد. بې له شکه موږ د دې علاقمند یو څو پوه سو چي تر دې ټولو اسطورو لاندي کېدلو مخکي د موسی علیه السلام د ژوند اصلي سوانح څه شی دي؟

ډېرو کسانو د طاعون د لسو ناجوړیو او تر سرې بحیرې د اوښتلو په اړه د کیسو د فطري وضاحتونو د وړاندي کولو هڅه کړې ده، بیا هم د حضرت موسی علیه السلام اړوند د پخوانۍ لوزنامې ډېري مشهوري سوي کیسې اسطورې دي چي د نورو قومونو له اسطورو سره ژور ورته والی لري، د بیلګي په ډول د حضرت موسی علیه السلام او دلدلی (ختېنو) وښو کیسه د بابلي اسطورې سره هیښوونکی ورته والی لري چي د لوی عکادي باچا سارګون سره اړه لري او له ۲۳۶۰ څخه ۲۳۰۵ ق م پوري ئې حکومت کاوه.

په ټولیز ډول له حضرت موسی علیه السلام سره درو مهمو کیسو ته ټراو ورکول کېږي. لومړی نوموړی د یو سیاسي شخصیت په توګه پېژندل کېږي چي عبرانیان ئې له مصر څخه تر اکسوډس پوري رهنمائي کړل. په دې اړه تر لږ تر لږه دا خبره خو روښانه ده چي په همده پوري باید دا خبره وتړل سي. د دوهم انجیر د لومړیو پنځو کتابونو جینس، اکسوډس، لیویتي کس، نمبرس او ډیوټرو نومي د همده تالیف بلل کېږي. دې کتابونو ته د موسی علیه السلام د پنځو کتابونو نوم هم ورکول کېږي. همدا کتابونه د یهودانو تورات جوړوي. په دې کتابونو کي د حضرت موسی علیه السلام د شریعت بیان دئ چي د قوانینو ټولګه ده. دې کتابونو د انجیل په عصر کي د یهودانو د کړنو ساتنه وکړه او په همدې کي لس حکمونه (احکام عشره) شامل دي. د دوی د بې ساري اغېز له مخي چي تورات په مجموعي توګه او لسو حکمونو ئې په ځانګړي ډول پر خلکو وشیندل، د دوی لیکوال د یو ستر او بې ساري اغېزناک شخص په توګه منلای سو خو د انجیل یو شمېر پوهان په یوه خوله دا نظر لري چي حضرت موسی علیه السلام په یوازي سر د دې ټولو کتابونو لیکوال نه دئ. په ښکاره ډول دا کتابونه تر یوه د ډېرو لیکوالانو د قلمي زیار نتیجه ده. په داسي حال کي چي د دې ټولو ډېره برخه مواد د حضرت موسی علیه السلام تر مرګ وروسته ولیکل سول. داسي شوني ده چي حضرت موسی علیه السلام د مروجو عبراني دودونو په راغونډولو او ترتیبولو او یا عبراني قوانینو په وضع کولو کي مهمه ونډه اخیستې وي خو په حقیقت کي زموږ سره کومه داسي لاره نسته چي په مټ ئې دا خبره ثابته کړو. دربیم دا چي ډېر خلک حضرت موسی علیه السلام د یهودي

وحدانیت بنسټ ایښودونکی مني. له یوه اړخه د داسي یو ادعا کوم بنسټ نسته. د موسی علیه السلام په اړه زموږ د ټولو معلوماتو مهمه سرچینه پخوانۍ لوزنامه ده په داسي حال کي چي په پخوانۍ لوزنامه کي په ښکاره ډول د وحدانیت بنسټګر حضرت ابراهیم علیه السلام ښوول سوی دئ. خو دا روښانه ده چي که حضرت موسی علیه السلام نه وای، نو یهودي وحدانیت به له منځه تللی وای. نوموړي د هغه په ساتنه او تر راوروسته نسلونو پوري د هغه په لېږد کي بنسټیز رول ادا کړ. د همدي حقیقت پر اساس باندي د هغه اهمیت مطرح دئ ځکه د نړۍ دوه ستر مذهبونه عیسائیت او اسلام دواړه همدا د یهودي وحدانیت څخه خروب سوي دي. د یوه رښتیني خدای تصور چي حضرت موسی علیه السلام ژوره عقیده ورباندي درلوده، له همدې امله د نړۍ په لویه برخه کي د منلو وړ وګرځېده.

## (۱۶)

## چارلس ډاروین

**(۱۸۰۹ - ۱۸۸۲)**

چارلس ډاروین چي د فطري انتخاب په مټ د بدن د غړو د تکامل نظریه ئې وړاندي کړه، پر ۱۲ فبروري ۱۸۰۹ د انګلستان د شیروزبري په ښار کي وزېږېد (په عین ورځ ابراهام لنکن هم زېږېدلی دئ). په شپاړس کلنۍ کي ئې د طب د لوستلو له پاره د ایډن برګ په پوهنتون کي داخله واخیسته. خو طب او د غړو علم دواړه ورته بې خونده معلوم سول. لږه موده وروسته کیمبرج ته بدل سو. هلته ئې تر زده کړي له آس سپرېدلو او ښښه ویشتلو سره علاقه ډېره وه. خو دی په دې وتوانېدی چي خپل یو استاد دومره اغېزمن کړي چي دی د ایچ ایم ایس پیګل د څېړنیزي دورې له پاره د طبیعي علومو د پوه په توګه مقرر کړ. د دې ټاکني د منلو له امله د چارلس پلار له ده سره مخالفت هم وکړ. هغه دا انګېرله چي دا ډول سیل او ګښت نوموړی د یو جدي کار د راشروع کولو له چاري راګرځولای سي. له ښه مرغه ئې پلار راضي کړ څو هغه د سفر اجازه ورکړه. وروسته د دا بحري سفر د لوېدیزي نړۍ په ساینسي تاریخ کي قیمتي ثابته سوه.

په ۱۸۳۱ کي ډاروین د ۲۲ کالو په عمر له پیګل سره په سفر روان سو. راوروسته پنځه کاله پیګل د نړۍ پر شاوخوا راوګرځېد. هغه په ډېر اطمینان سره د سویلي امریکا د ساحلونو پر غاړو خوځښت ته دوام ورکړ. پر لیرو پرتو جزیرو ئې څېړنه وکړه او د بحرالکاحل نوري جزیرې ئې هم وکتلې. د عربو بحیرې او د جنوبي اوقیانوس بحر ته هم ولاړ. د دې اوږده سفر پر مهال ډاروین د فطرت ډېري عجایبي ولیدې، له پخوانیو قبیلو سره ئې ولیدل، په ډېر شمېر کي پاته شوني (فوسلز) په لاس ورغلل او د ډېرو نباتاتو او حیواناتو مشاهده ئې وکړه. پر دې سربېره، خپل مشاهدات ئې په تفصیل ورسره لیکل. دې حوالو د ده د راوروستو لیکنو له پاره د بنسټ کار ورکړ. له همدې څخه یې خپلي ځیني نظریې وضع کړلې. له همدغو څخه ئې هغه کره شواهد هم وړاندي کړل چي د ده نظریې ئې دومره د پام وړ وګرځولې.

ډاروین په ۱۸۸۶ کي کور ته راستون سو. راوروسته شل کاله ئې د کتابونو یوه لړۍ را پیل کړه چي په مټ ئې نوموړی د انګلستان په بهترینو ژوپوهانو کي راوست. د ۱۸۳۷ په لومړیو کي ډاروین دې پایلې ته ورسېد چي د حیواناتو او نباتاتو ډولونه د بدلون وړ دي او د مځکي د طبقو د تاریخ په لړ کي په اوږد مهال کي ئې تکامل کړی دی. دا مهال نوموړی نه

پوهېدی چې د دې تکامل پایله څه کېدلای سي؟ په ۱۸۳۸ کي نوموړي د تامس مالتیس یوه مقاله د (د نفوسو پر قوانینو یوه مقاله) تر عنوان لاندي ولوستله. له دې مقالې څخه ده ته د دې نظریې په هکله اشاره په لاس ورغله چې د تنازع للبقاء (د ژوندي پاته کېدلو له پاره د جنګ) په پایله کي د فطري انتخاب عمل منځ ته راځي. خو د فطري انتخاب د اصولو د ترتیب سره سره ئې د خپلو نظریو په خپرولو کي بېړه و نه کړه. ده ته معلومېدله چې له دې نظریې څخه ټینګ اختلافات را پار ېدلای سي نو ئې یو اوږد مهال په احتیاط سره شواهد را یو ځای کړل او د خپلې مفروضې په ملاتړ ئې د دلایلو په ترتیبولو تېر کړ.

د ۱۸۴۲ په لومړیو کي ئې د خپلې نظریې یوه خاکه ولیکله. تر ۱۸۴۴ پوري د یو کتاب په لیکلو بوخت وو. خو کله چې په ۱۸۵۸ کي ډاروین په خپل ستر کتاب کي سموني او زیاتوني کولې، ده د الفرډ رسل ویلاس یوه مسوده تر لاسه کړه (نوموړی په ختیځ انډیز کي د طبیعي علومو یو انګرېز پوه وو). ویلاس د تکامل په اړه خپل نظر ورکړی وو. په یوه لحاظ د ویلاس نظریه له ډاروین څخه بېله نه وه. ویلاس خپله نظریه په بشپړ آزادانه ډول وضع کړې وه او تر چاپولو دمخه ئې مسوده یوه ساینسپوه ته د هغه د نظر اخیستلو له پاره لېږلې وه. دا یو اندېښمنوونکی حالت وو چې په ډېره آسانۍ سره یو له بل څخه د میدان ګټلو په اړودوړ اوښتلای سوای. ورپسې میاشت د ویلاس مقالې او د ډاروین د کتاب خاکې د یوه ګډ مضمون په بڼه د یوې ساینسي ټولنې په وړاندي کښېښوول سوې.

دې ګډ کار ته چا کومه خاصه پاملرنه و نه کړه. خو په دا بل کال د ډاورین کتاب (د ډولونو پیدایښت) چاپ سو چې یو انقلاب ئې رامنځ ته کړ. پر ساینسي موضوعاتو تر بل هر چاپ سوي کتاب ډېرو زیاتو خلکو په خورا جوش سره له دې کتاب څخه د خپل بحث موضوع جوړه کړه. په دوی کي ساینسپوهان هم شامل ول او عوام هم. د بحث موضوعات په دې ډول ول: ۱- د ډولونو پیدایښت د فطري انتخاب له لاري، ۲- د پایښت له پاره په جګړه کي د ټاکلو ډولونو تکامل. په ۱۸۷۱ کي بحثونه لا ګرم ول چې ډاروین د (انسان زوال) او (انتخاب د جنس په لحاظ) کتاب چاپ کړ. دې کتاب چې پکښې دا نظریه وړاندي سوې وه چې انسان له بیزو ډوله شکل څخه اوسنۍ بڼې ته ارتقاء کړې ده، د دې بحثونو په لا ګرمولو کي پر اور د تیلو اچولو غوندي اغېز وکړ.

ډاروین د ده پر نظریو باندي کېدونکو دې عوامي بحثونو کی هیڅ برخه وانخیسته. یو علت خو ئې دا وو چې د بیګل له سفر څخه تر راستنېدلو وروسته د ده روغتیا سمه نه وه (دا ناروغتیا نوموړي ته په جنوبي امریکا کي د کوچنیو خسمانانو له چیچلو څخه ور پیدا سوې وه). د تکامل (ارتقاء) د نظریې له پلویانو سره د مس –ایچ – بکسلی غوندي یو لېواله مناظره باز او د ډاروین د نظریو یو ملاتړی موجود وو. کله چې ډاروین په ۱۸۸۱ کي مړ کېدی، اکثرو مهمو ساینسپوهان د ده د نظریو پر سموالي باور ته رسېدلي ول. ډاروین د ژویو د تکامل (ارتقاء) بنسټګر نه وو، ځینو کسانو تر ده مخکي خپلې مفروضې وړاندي کړي وې چې فرانسوی طبیعت پوه ژان لیمارک او د چارلس نیکه اراسمس ډاروین ئې له جملې څخه ول. خو د هغوی مفروضې کله هم د ساینس په نړۍ کي د منلو وړ و نه ګرځېدې ځکه دوی د ارتقاء (تکامل) په اړه قانع کوونکی وضاحت ورنه کړای سوای. د ډاروین کارنامه

اصل دا وه چي نه یوازي دارتقاء د عمل پوره نظام ئې وړاندي کړ، ورسره سم ئې د خپلي ادعا په ملاتړ ډېر دلایل هم ورکړل.

دا باید په یاد ولرو چي ډاروین دا نظریه د پیدایښت د علم (Genetics) څخه له ګټي اخیستلو او یا ویلای سو د هغه په هکله د کومي خبرتیا درلودلو پرته وړاندي کړه. د ډاروین د ژوند پر مهال څوک په دې اړه نه پوهېدل چي څنګه په یو عجیبه طریقه ځیني ځانګړي اوصاف له یوه نسل څخه بل نسل ته لېږدول کېږي. که څه هم په هغو شپو ورځو کي چي ډاروین د خپلو هیجان پاروونکو کتابونو په لیکلو او چاپولو بوخت وو، ګریګر مینډل د وراثت پر قوانینو کار شروع کړی وو. د مینډل کار چي د ډاروین له کاره سره ډېر په توافق کي وو، تر ۱۹۰۰ ع پوري ئې پاملرنه جلب نه کړای سوای. په داسي حال کي چي د ډاروین نظریې هر ځای د خلکو پر ژبه وې. نو د ارتقاء په اړه زموږ نننۍ پوهه چي د وراثت زېږدیز پړاونه د فطري عمل له انتخاب سره تړي، د ډاروین تر وړاندي کړي نظریې ډېره بشپړه ده.

د بشر پر فکر باندي د ډاروین اغېزي ډېري ژوري دي. په تېره له ساینسي لیدلوري، نوموړي د ژوپوهني په برخه کي انقلاب رامنځ ته کړ. فطري انتخاب جهانشموله اصول دي چي په نورو ډګرونو کي ئې هم د تطبیقولو هڅه سوې ده لکه په لرغونپوهنه، ساختماني عرصه، سیاسي علومو او اقتصادي علومو کي.

خو تر ساینسي ئې هغه اغېزي ډېري مهمي دي چي د ډاروین نظریې پر مذهبي اند باندي واچولې. د ډاروین د ژوند پر مهال او له هغه وروسته تر ډېرو کلونو د ځینو کلکو عقیدو لرونکو عیسویانو دا فکر وو چي د ډاروین نظریه منل مذهبي عقایدو ته سپکاوی دئ. د دوی ډېره تر ډېره ځایه پر ځای وه خو دا روښانه ده چي مذهبي جوش او جذبې په عمومي راکمېدلو کي تر دې آخوا نورو عواملو هم رول لاره. (ډاروین خپله لاادري (Agnostic) سو)

په یوه لا مذهب کچه هم د ډاروین نظریې د نړۍ په مختلفو لیدلوریو کي تغیرات راوستل. انسان د موجوداتو په فطري نظام کي اوس له هغسي مرکزي دریځ څخه نه وو برخمن لکه مخکي چي ئې لاره. اوس نو موږ د بې شمېره نورو ژوندي شیانو په قطار کي یو ډول ئې وو. موږ باید دا شونتیا رد نه کړو چي یوه ورځ د موجوداتو له ډلي کوم شی پر موږ لوړوالی پیدا کولای سي. د ډاروین د لیکنو په پایله کي د هریکلیتس دا خبره چي (بې له تبدیلۍ څخه بل هیڅ شی ثابت نه دئ) په تولیزه کچه ومنل سوه. د بشر د پیل اړوند د تولیزي توضیح په توګه د ارتقاء د نظریې بریالۍ کېدني دا باور لا نور پیاوړی کړ چي ساینس د ټولو طبیعي پوښتنو جواب ویلای سي خو (د ټولو انساني مسئلو جواب نه سي ویلای). د ډاروین اصطلاحات لکه (د بهتر پاته کېدنه Struggle for survival) او یا د بهترین له پاره پاتېدنه زموږ د مصطلحاتو برخه وګرځېده.

روښانه خبره ده که ډاروین نه وای پیدا سوی، بیا به هم دا نظریه رامنځ ته کېدلای. اصلاً د ویلاس بېلګه یو داسي حقیقت دئ چي پر بنسټ ئې دا خبره د بل هر لوی شخص په پرتله پر ډاروین ډېره ښه تطبیق کېدلای سي. په هر حال، دا ډاروین وو چي لیکنو ئې په ژوپوهنه او لرغونپوهنه کي انقلابي ترمیمونه راوستل او په نړۍ کي ئې د انسان دریځ او رول ته تغیر ورکړ.

نور بیا ...

که ځان درباندې ګران وي نو ښه
وینا وکړه چې پر خلکو هم ګران سي

# د بیان کولو قدرت

لیکوال: برایان تریسي
فارسي ترجمه: پروین آقائي
پښتو ترجمه: احمد صمیم

برایان تریسي (۴۰۰۰) ویناوې په ۴۶ هیوادو کې پنځو ملیونو نفرو ته کړې دي. د ده د تجربو خلاصه دا ده:

۱. ښه وینا د خلکو احترام جلبوي.
۲. د ښې وینا اساس ښه فکر کول دي.
۳. د وینا دمخنۍ آمادګي او سازماندهي پر بیان باندې حاکمیت راولي.
۴. که ستاسي اندروني حالت مثبت وي نو ستاسي عمل او وینا هم مثبت شکل اخلي.
۵. د بیان مهم نکات پر فلیپ چارټ باندې ولیکئ.
۶. شوق، تصمیم او نظم د ښې وینا کولو اساسات دي.
۷. زموږ لوی دښمن او زموږ لوی خنډ زموږ بېره ده.
۸. وینا کول هم لکه یو کسب په تمرین سره زده کېږي.
۹. د وینا لوی ارکان منطق، اخلاق او عاطفه ده.
۱۰. ستاسي وینا په درو شیانو سره تاثیر پیدا کوي: ۱/ ښه کلمات، ۲/ بم آواز، ۳/ د بدن حرکات یا د بدن ژبه.
۱۱. ستاسي جملې باید یا خبري وي یا استفهامي (خبري کلام، تام کلام) یا مفید کلام ته وایي، یعنې چې مبتداء او خبر ئې معلوم وي.
۱۲. د سترګو تماس ډېر قوي اثر لري او ستاسي پیام جذبوي.
۱۳. ستاسي تبسم اوربدونکی هم متبسم کوي.
۱۴. ستاسي جدیت د خلکو جدیت راپاروي.
۱۵. د وینا ساختمان: ۱/ مقدمه، ۲/ اصلي موضوع، ۳/ خلاصه، ۴/ نتیجه ګیري یا د عمل دعوت یعني اوس پر تاسي څه تېرېږي؟ څه غواړئ؟ څنګه ئې غواړئ؟ کله ئې غواړئ؟ ولې ئې غواړئ؟ دغسي پوښتني مطرح کړئ بیان خپله تود یږي.
۱۶. ستاسي د بیان سازماندهي باید سلسله واره وي او بې ارتباطه نه وي.
۱۷. وینا په وینا کولو سره زده کېږي.

د وینا د جرئت لاري:

۱. په یو ښه جذاب شعر سره شروع کول.
۲. په کور کې تمرین او تکرار ډېر ډېر کول. آمادګي ستاسي اعتبار زیاتوي.
۳. داسي فکر کول چي ستاسي د لحن او آواز ازموینه اخیستل کېږي او ستاسي څخه یو فلم ډکېږي او دغه فلم ستاسي د لوړ شهرت سبب ګرځي.
۴. د بیان په سر کي یوه وجیزه یا زرین قول بیان کړئ.
۵. د یوه بل باتجربه وینا کوونکي د بیان طرز او اداء زده کړئ.
٦. د خپلي وینا له پاره یو فهرست او ګراف ترتیب کړئ.
۷. د هر لغت له پاره ډېري مترادفي معناوي پیدا کړئ.
۸. وینا باید ستاسي په فکر کي نه وي، بلکي باید ستاسي د اورېدونکو په باره کي وي.
۹. د مخاطبینو جنسیت، د معلوماتو سطحه او د دوی ارمان په نظر کي ولرئ.
۱۰. د مخاطبینو مشکل درک کړئ، بیا ئې نو علت او د حل لاري وروښیاست.
۱۱. د منلو خلکو منلي اقوال تائید کړئ او قهرمان ئې معرفي کړئ.
۱۲. واردواره پر کوچنیو ګروپونو خپل پرکټس قوي کړئ.
۱۳. کله کله په وینا کي قدم هم ووهئ.
۱۴. دا معلومات باید ولرئ چي دمخه وینا کوونکي د اورېدونکو په نظر کي څنګه وو، ښه وو، که بد؟
۱۵. هر چا ته به د دوی د ذوق مطابق بیان کوئ او په هغه مربوطه موضوع کي به د دوی اتلولي بیانوئ.
۱٦. د کوم پاراګراف سره د هغه هم آهنګ لفظ هم وراضافه کوئ. لکه: "پنج ګنج"، "شصست و شکست"، "اخلی پخلی" څکه دا په ذهن کي ښه ثبتېږي.
۱۷. تر تمرین وروسته یو بل نهایي تمرین هم وکړئ. د غټو کلماتو یا عنوانونو د تورو معناوي هم جوړي کړئ. مثلاً کار (ک) یعني کول، (الف) یعني آرزو، (ر) یعني ریاضت.
۱۸. تقریر په ماهرانه او قاطعانه ډول سره په ټینګ ایمان او عقیدې سره وکړئ.
۱۹. که تاسي خپل بیان ته اهمیت ورکړئ نو خلګ هم اهمیت ورکوي.
۲۰. په بیان کي د محبت، صداقت او صمیمیت اظهار وکړئ.
۲۱. ښه ویونکی لکه د فلم یو ښه اداکار چي ټول ئې خوښوي.
۲۲. مخاطبین ستاسي مېلمانه دي وئې نازوئ او جدي برخورد مه ورسره کوئ.
۲۳. بېره تر مرګ بېرووونکې ده.
۲۴. ستاسي موفقیت دا دئ چي ووایې "زه ښه بیان کولای سم" زه یو بې مثاله مقرِر یم.
۲۵. ستاسي ذهني تصویر ستاسي ناخودآګاه ضمیر راوېښوي. ستاسي دغه پیام اخلي او هغسي حالات درته ایجادوي او خپله برنامه ریزي کوي او حالات ستاسي په کامیابی باندي تماموي.
۲٦. د تقریر په شروع کي داسي فکر وکړئ چي آخر به ټول اورېدونکي زما څخه خوشحاله ځي.
۲۷. تر تقریر دمخه اووه واره تنفسي تمرین، عضلاتي تمرین او فکري تمرین وکړئ.
۲۸. حاضرین ټوله خپل دوستان فرض

کړئ، د پښتو ګوتو ته حرکت ورکړئ او له خوښۍ څخه تبسم وکړئ.

۲۹. د تقریر په سر کې داسې وواياست چې د هغه چا څخه مننه چې دلته ئې ما ته وخت راکړ او له هغه چا څخه تشکر چې ما ته ئې اوس غوږ دئ او زما خبرې اورې.

۳۰. په عاطفي لحاظ د اورېدونکو ذهن ته ننوزئ او ځان د دوی تر څنګ فرض کړئ، په ذهني لحاظ ځان تر نورو قوي فرض کړئ.

۳۱. د مشترکو نکاتو څخه ئې شروع کړئ او اورېدونکي هم د ځان طرفداره جوړ کړئ.

۳۲. د بيان له شروع څخه د چا د شخصيت اندازه لګېږي نو بايد په ښو کلماتو شروع وکړو.

۳۳. که غواړئ چې اورېدونکي په روحي لحاظ حاضر او متوجه کړئ نو وواياست چې له دې کنفرانس څخه زموږ هدف څه دئ؟ موږ بايد څه ځني زده کړو؟ اوس نو بايد څه وکړو؟

۳۴. په یوه لطيفه سره ئې شروع کړئ، مثلاً ورته وواياست: لږ مخ ته راسئ چې عجب يو راز درته ووايم (يوه مهمه خبره ورته وکړئ)، د اخبار يو مهم خبر وواياست او د خپلو خبرو سره د ربط له پاره د سند او شاهد په توګه اخبار ورته پورته کړئ چې دغه دئ په دې اخبار کې داسې بيان راغلی دئ.

د جلسې مهمې خبرې دا دي:

۱. افتخار لرم چې نن ستاسې سره يم.
۲. د جلسې د طراحانو صفت وکړئ.
۳. مثبت مثبت زېرې خلکو ته ورکړئ.
۴. اوليه مقدمې او نهايي نتيجې ته ربط سره ورکړې.
۵. بم آواز په کرار سرعت سره ډېر تاثير لري.

د کاميابه بيان څو ضروري نکات:

۱. په ډېر ښه او ډېر عالي کلماتو سره د چا تائيد وکړئ.
۲. د اورېدونکو د پوهې، لباس او څېرې تعريف وکړئ.
۳. د هغه چا قدر وکړئ چې تاسې ئې خپلو اشتباهاتو ته متوجه کړې ياست.
۴. اورېدونکو ته ډېره توجه وکړئ، تر څو د دوی مغز (اندروفين) يا د خوښۍ ماده ترشّح وکړي.
۵. که د نظر مخالفت موجود وي نو داسې وواياست چې: ۱/ که چيرې درېم نفر ستاسې د نظر مخالف وي ستاسې جواب به څه وي؟ ۲/ ما هيڅ فکر نه کاوه چې داسې نظر هم وجود لري، ۳/ زه په دې مخالفه باره کې غواړم چې څه معلومات حاصل کړم، ۴/ دا ما ته ډېره جالبه ده، زه بايد پوه سم، تاسې ما ته نور توضيحات هم راکړئ! داسې بيان وکړئ لکه ستاسې څخه چې په مخفي ډول يو فلم اخيستل کېږي. د دې وياړ له پاره تر تمرين او امادګۍ بله مؤثره لار نسته.
٦. د برخورد په وخت کې محطاطانه قدم واخلئ او په بد برخورد سره اور ته لمن مه وهئ.
۷. مخالفتونه نوټ کړئ او حل لاره ئې وليکئ.

۸. همېشه له حقايقو څخه خبره شروع کړئ. له اورېدونکو څخه تائيد واخلئ او په ګفتګوی کې ئې له ځانه سره شريک کړئ بيا به ټوله ستاسي حمايت وکړئ. د سترګو تماس د ټولو سره يو شان قايم وساتئ.

۹. مجلس د (U) په شکل جوړ کړئ چي ټول سره ووينې.

۱۰. له کليدي نکاتو او تصاويرو څخه هم کار واخلئ.

۱۱. که بيان نه سي کولای نو د تېرو بيانو د ويونکو مهم ټکي نوټ کړه او وئې وايه.

۱۲. د اورېدونکو سره په يوه سطحه کي ځان وښيه، يعني د دوی د طرز تفکر سره وختي لا آشنايي پيدا کړه. تاسي بايد په دې پوه سئ چي تر تاسي دمخه کوم کوم بيانونه سوي دي، او د هغو ويناوي بيا مه تکراروئ.

۱۳. وواياست چي موږ د تېرو په پرتله د تاريخ په يوه زرين دور کي ژوند کوو "موږ څنګه هدف ته رسېدای سوای؟ دلته لږ سکوت وکړئ" سکندر څرنګه په لږو لښکرو باندي پر ايران کاميابه سو. علتونه ئې درې ټکي وه: ۱/ لښکرو ته ئې د مسئوليت احساس ورکړ. ۲/ تعهد ئې ځني واخيست. ۳/ او ... واحده رهبري ئې درلودله. نن هم ستاسي او رقيب تر منځ هغسي شرايط وجود لري او له دغو درو لارو څخه پر کاميابه کېدلای سئ.

۱۴. د مغز نيمه ګره د حقايقو په بيان باندي ډکه کړئ او نيمه ګره هم په احساساتو، تصويرونو، اشعارو او داستان باندي ډکه کړئ او ربط سره ورکړئ.

۱۵. متوجه افرادو ته يوه يوه مهمه جمله وواياست او سترګي ورته متوجه کړئ. دا وواياست: غوږ ونيسئ دا يوه مهمه واقعه لا واورئ! دلته به نو تاسي پر موضوع ښه تسلط پيدا کړئ. هغه په ياد کړې موضوع به بيان کړئ.

۱۶. په بيان کي له يوه ښاخ څخه بل ښاخ ته مه غورځئ، بلکي د موضوع ارتباط او انسجام ته ډېره پاملرنه وکړئ.

۱۷. صحبت هغه وخت مؤثر ګرځي چي ځان په کرار کرار هدف ته ورسوئ. ښه فکر وکړئ، ښه تصميم ونيسئ او ښه وينا وکړئ.

۱۸. د بحث ټولي برخي په يوه رسۍ سره وتړئ، بيان مو په يوه مؤثره جمله سره ختم کړئ.

که چيري تاسي (انانسر) ياست نو وينا کوونکي ته وواياست چي: تاسي ډېرو مهمو نکاتو ته اشاره وکړه او ستاسي په خبرو کي دا خبره ډېره مهمه وه چي ما خاصه علاقه ورسره درلوده. ستاسي له وينا څخه مو خاص خوند واخيست.

په ټوکه کي د چا حيثيت مه مجروح کوئ.

په واده کي وواياست: تاسي ته د عشق او خوشبختۍ څخه ډک ژوند غواړم. په فاتحه کي وواياست: افسوز دئ هغه اوس زموږ په منځ کي نسته، خو خواږه خاطرات به ئې زموږ سره همېشه يادګار وي. هغه صادقه، مهربانه، دلسوزه او يو ښه انسان وو. د ده خاطرې به د ده حضور زموږ سره ژوندی کړي.

که مو آواز سم نه وي. د رود پر غاړه باندي په لوړ آواز وينا وکړئ. د رود لوړ لوړ آواز پورته کړئ. آواز مو لکه د موسيقۍ زير و

بم غونډي عیار کړئ.

که صوتي سیستم درست نه وي نو خبري مه کوئ. د خبرو د ځای ګرمي او یخ هم په نظر کي ونیسئ او چاره سازي ئې وکړئ. تمرین هم په زیروبم سره وکړئ.

تلیفوني مکالمه په یاد کړئ او اخلاق ئې په نظر کي ونیسئ. لکه اسلام علیکم، وبخښئ، زه فلانکی زحمت درکوم، په خیر یاست؟

په تالار کي باید تاسي په پوره روښنایي کي وځلیږئ. کله کله سټېج ته تغیر ورکړئ. مخاطبین باید سره نژدې نژدې وي او هم باید تاسي ته نژدې وي.

جلسه د مهمو خلکو په وینا سره شروع کړئ. هر څونه چي لیري یاست هغومره باید لوړ سټېج ولرئ. د تعجب په یوه جمله سره بیان ختم کړئ او تبسم وکړئ.

پر چا باندي په جبر تقریر مه خرڅوئ. بد وینا کوونکی هغه دئ چي د چا سوالو ته غوږ نه نیسي. تر انشایي جملو تامي خبري جملې ډېر اغېز لري. د درمل په وخت کي توصیه مه کوئ.

خرڅوونکی باید د رانیوونکي اعتراض ومني. داسي باید ویونکی د اورېدونکي اعتراض ومني.

وواياست چي څه شي غواړئ؟ څه شي ردوئ؟ کوم کوم مشکلات لرئ؟

ښه وینا کوونکی لکه ښه خرڅوونکی ډېر مشتریان لري. یوه دوستانه څېره په نظر کي ونیسئ او ورته وګورئ او یوه دوستانه خبره ورته وکړئ.

شکست دا دئ چي مشتریان ټوله شیان رد کړي، یا ستاسي هیڅ وینا خوښه نه کړي.

***

لیکوال: جبران خلیل جبران
ژباړونکی: احمدالله څرګند

## جګړه

یوه شپه په مانۍ کي مېلمستیا جوړه وه، یو سړی راغی او د باچا مخ ته ئې ځان پرمخی وغورځاوه؛ د ټولو مېلمنو سترګي ور واوښتې، ګوري چي یوه سترګه ئې وتلې ده او له خالي قالب څخه ئې ویني بهېږي.

باچا پوښتنه ورڅخه وکړه: "څه ټکه درباندي رالوېدلې ده؟" سړي په جواب کي وویل: "آه باچا صاحب! زه یو غل یم، یوه شپه په تورتم کي چي سپوږمۍ هم پټه وه، زه ولاړم چي د صراف دوکان ووهم، نو د کړکۍ له خوا ورپورته سوم، خو خطاوتم او په ناپامۍ کي د جولا دوکان ته ورغلم، په تیاره کي د جولا کارځای(کډۍ) ته ولوېدم او سترګه مي ووته. آ باچا صاحب! زه ستا څخه اوس انصاف غواړم، زما حق له جولا راواخله". سمدستي باچا په جولا پسي نفر واستاوه او هغه ئې راووست. باچا امر وکړ چي یوه سترګه ئې باید را وایستل سي.

"باچا صاحب ستا قربان سم!" جولا وویل: "ستا پرېکړه عادلانه ده، زما سترګه باید وایستل سي، خو افسوس افسوس! زما د کسب له پاره دواړي سترګي مهمي دي ولي چي زه باید د اودلو پر مهال د ټوکر دواړي خواوي ووینم. خو زه یو ګاونډی لرم، موچي دی، هغه هم دوې سترګي لري، مګر د هغه په کسب کي دواړو ته اړتیا نه پیدا کېږي".

باچا سمدستي په موچي پسې نفر ولېږه، هغه ئې راووست او یوه سترګه ئې ورڅخه وکښل.

او انصاف وسو.

***

# اغېزه ناکه مذاکره

## د مذاکرې خاصې نقطې وپېژنئ
## دوه اړخیزه ګټونکي حالتونه وپېژنئ
## اجنډا جوړول او د مقابل لور اجنډاوو ته جوابونه

لیکوال: کین لاسن، ایم. اې، اي ډي. ایم
ژباړه: **سعید لودین/ کاناډا**
(دریمه برخه)

### (مناسب طرز تفکر خپلول)

مناسب طرز تفکر خپلول د هرې مذاکرې خاص شرط دئ. د دې له پاره چې مناسب فکر مو خپل کړی وي، تاسو باید د مذاکرې ۳ ډېر خاص او ضروري ډولونه په کار واچوئ:

۱. ته په څونده اندازه کولای سې چې خپل حریف ته ځان په ښه توګه نژدې کړې؟

تاسي باید د خپل حریف سره داسي اړیکی ټینګ کړئ چې د مذاکرې تر هغسي نتیجې وروسته چې ستا زړه ئې غواړي هم پر ځای پاته او اغېز[illegible] وي. د دې دا معنا نه ده چې ته دي نو[illegible] هدفونو ته ارزښت ور نه کړې، بلکي تا ته [illegible]اید د مذاکرې ډول او طریقه دونه مهمه و[illegible] څونه چې د خپلو غوښتنو د تر لاسه ک[illegible] چې دي وي.

۲. ته په څونده ښه اندازه کولای سې چې د خپل حریف فکر ځان ته معلوم کړې؟

څنګه چې مذاکره کرار کرار پرمختګ کوي، خپله ټوله توجه مو و دې ته کړئ چې حریف مو څنګه فکر کوي او یا ستاسو غوښتنو ته د هغه عکس العمل څنګه وي؟ دا کار به تاسي ته د هغه د ګټو د معلومولو او ګټو ته ئې د جواب ورکولو چانس په لاس درکړي.

په دې کار سره به تاسي نه یوازي خپلي ګټي ورته ښکاره کړي وي بلکي د ګډو ګټو ځای به مو هم ځان ته معلوم کړی وي په داسي حال کي چې تر مخه هیڅ هم نه ول معلوم.

۳. ایا ته د نرم فکر خاوند کېدلای سې؟

د نرم فکر کولو طرز خپلول به ستاسي سره په دې کي مرسته وکړي چي د نورو خلکو و بيري، اندېښنو او هڅو ته په قدر او درنه سترګه وګورئ او د ګټلو لوی چانس به ئې هم په لاس درکړی وي. بله ئې لا دا چي د نرم فکر کولو د طرز په خپلولو سره ممکن تاسي په مذاکره کي د رهبری مقام ته ورسېږی او مذاکره په خپله ګټه رهبري کړئ.

## پوښتني کول

د هري مذاکرې اصلي برخه پوښتني کول دي. تاسي باید په پراخه پیمانه له ځان سره پوښتني ولری خو د یوه ښه پیل له پاره و لاندي ساده پوښتنو ته جوابونه ولیکئ:

۱. ته څه شي تر لاسه کول غواړې؟

..............................................

..............................................

..............................................

..............................................

..............................

۲. ستا حريف څه شي تر لاسه کول غواړي؟

..............................................

..............................................

..............................................

..............................................

..............................

۳. ستا د حريف له پاره اصلي لانجې څه شي دي؟

..............................................

..............................................

..............................................

..............................................

..............................

۴ـ ستا حريف ستا څخه څه ډول اړيکی غواړي؟

..............................................

..............................................

..............................................

..............................................

..............................

۵. د مذاکرې څخه ستا اوږدمهالي هيلي څه شي دي؟

..............................................

..............................................

..............................................

..............................................

..............................

۶. هغه کوم خنډونه دي چي و یوې ګډي ګټي درلودونکي جوړي ته مو نه پرېږدي؟

..............................................

..............................................

..............................................

..............................................

..............................

### (ستاسي ګټي څه شي دي؟)

ته هم باید و ځان ته خپلي ګټي معلومي کړې. ښايي دا و تاسو ته داسي وايسي چي دا خو نو ښکاره خبره ده خو داسي نه ده. ستاسي باید دا په پام کي وي چي خپل موقف او د هغه تر شا خپلي ګټي سره جلا کړئ. د دې [illegible] مخه چي غونډه شروع سي، ته باید دا لاندي درې موضوګاني په نظر کي و نیسې:

۱. هغه کوم شی دی چي ته یې حتماً له خپلي مذاکرې څخه غواړې؟

که غواړې چي مذاکره دي ستا د خوښي نتيجه ولري نو هغه اصلي او بنسټيز معلومات چي ستا [illegible] مذاکرې د ملا تير

جوړوي (نرخ، تقسیم اوقات، اخیري تاریخ، کیفیت) باید په نظر کي دي نیولي وي خو پر څنګ دي باید د خپل حریف سره اړیکي ټینګول هم له پامه مه غورځوه. د نه بایدې له پاره دا هم په نظر کي ونیسه چي دا دي د همدې یو واري له پاره معامله ده.

۲. ستا احتمالي پلان څه شي دئ؟

یو به نو داسي وي چي حریف دي ببخي لوېدلی وي او غوښتني دي یوه په بله پسي درپوره کوي. خو ته باید و دې ته هم اماده اوسې چي هر څه چي ته غواړې شاید تر لاسه ئې نه کړای سې. تا باید یو احتمالي پلان هم جوړ کړی وي او په هغه کي داسي څه وي چي ته ئې د مذاکرې په هغه حالت کي غوښتونکی سې په کوم حالت کي چي دي ټوله ګټي نه سې تر لاسه کولای.

۳. هغه کوم قیمت دئ چي ته ئې و مذاکرې ته له ځان سره وړې؟

دا قیمت باید تر هغه قیمت ډېر لوړ وي چي ته ئې غواړې او یا ضرورت ورته لرې. دا باید ستا د مذاکرې د پیلېدلو نقطه او قیمت وي او له دغه ځایه بیا ته کولای سې چي و حریف ته ښکاره کړې چي ته و ده ته د امتیاز ورکولو په خاطر خپل قیمت راکښته کوې.

لاندي فارم ډکول به ستاسو سره ستاسو د ګټو په معلوموولو کي مرسته وکړي:

۱. ستا د خوښي نتیجه څنګه نتیجه ده؟

..........................................
..........................................
..........................................
..........................................
..........................

۲. تر کومو شیانو ته ور تېرېدلای سې؟

..........................................
..........................................
..........................................
..........................................
..........................

۳. له حریف سره دي په اینده کي څنګه اړیکي وینې؟

..........................................
..........................................
..........................................
..........................................
..........................

۴. ستا احتمالي پلان څه شي دئ؟

..........................................
..........................................
..........................................
..........................................
..........................

۵. ستا لوړنی قیمت کوم قیمت دئ؟

..........................................
..........................................
..........................................
..........................................
..........................

۶. هغه کوم قیمت دئ چي ته به و جوړې ته پر ورسېږې؟

..........................................
..........................................
..........................................
..........................................
..........................

نور بیا ...

***

(۲)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاريخي ناول)

ليکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسين صديقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

### مصيبت ځپلي خلک

د ارشد ملګرو ته ډېر ژر معلومه سوه چي ارشد نه دئ زخمي سوی. هغوی ځکه تعجب وکړ چي ارشد د خپل زړه ورتوب او شجاعت سره سره ځنګه د مرميو د ږغونو اوريدو بې هوښه کړ.

باران لا بيا هم په ځپو ځپو اوريدی. د غلو د اسونو د نالونو آوازونه که څه هم کرار کرار ليري کېدل بيا هم ښه سم اوريدل کېدل.

لږ ګړی وروسته ارشد پر حال راغی او سترګی ئې روني کړې. تر يو څه ښوريدو وروسته راوپاڅېد او د ناستي په حال کي ئې داسی وويل: غله خو به نه وي تښتېدلي؟

يو پوځي ځوان چي روڼا به يې بلوله او دا مهال د ده تر څنګ ناست وو، ورته وويل چي غله تول وتښتېدل. موږ ستا د بې هوښه کېدو له امله هيڅ هم ونه کړای سو.

ارشد اغا غټه ساه واخيسته او د ساړه اسويلي په حال کي ئې وويل چي اشرفه! دا خو ډېر بد کار وسو، آه.... خدايه! زه به څه کوم؟

د دغه ځوان نوم اشرف وو. دی هم ښه ځوان او ډېر ښايسته وو او داسي ئې وويل: غله زموږ په رارسېدو سره وتښتېدل. په دې کي خو موږ ملامت نه يو. حکومت په دې هکله زموږ څخه ګروېږني او تحقيقات نه کوي.

ارشد: زما ګرانه دوسته! زه، زه... مګر يا.

اشرف که څه هم د ارشد مأدون يعني تر ده په رتبه کښته وو، خو دواړه ډېر کلک ملګري ول. دوستي ئې ډېره ښه سره پالل. آن يو د بل له پاره ئې ځان هم قرباناوه. د دوی په دې دوستي باندی د خلکو کست کېدی.

اشرف چي د ارشد دغه مبهمه خبره واورېده نو داسي ئې ورته وويل: زه ډېر حيران يم چي ته ولي بې هوښه سوې؟

ارشد: بې هوښه! آه اشرفه مه مي پوښته!

اشرف: ځنګه ئې و نه پوښتم؟ ستا څېره خو بيخي پېژی، اوتکه ژړه ده.

ارشد: زما زړه... آه! ما چي به کله واوريدل چي فلاني زړه بايللی دئ نو پر وبه مي خندل، لاکن نن...

اشرف ورته وويل: چي آيا تا نن پخپله هم زړه بايلود؟

ارشد: هو همداسي ده.

اشرف: څنګه؟

ارشد: زه نه پوهېدم. نن ما د نړۍ تر ټولو ښايسته پېغله وليدله.

اشرف: پوه سوم! کله چي تا روښنايي واچوله هغه مهال ما هم دغه ځلانده سپوږمۍ وليده خو په يوه نظر مي سترګي داسي پر ولګېدې لکه بر ښنا چي وه.

ارشد: د برېښنا خلا او د سپوږمۍ روڼا د هغې د روښانه څېرې په وړاندي هيڅ هم نه دي.

اشرف: زه هک پک دې ته يم چي ستا خو

همېشه د ښځو څخه بد راتلل مګر اوس پخپله پر یوه تازه پېغله باندي مين سوې؟!

ارشد: زما غرور مات سو... اشرفه! په هر صورت، باران توند سو، موږ او ملګري مو ټوله لانده سوو. څو کسان هم زخميان دي. دا ټپي پوځيان خو يو وار ژر جبل سراج ته ورسوه.

په دې سره دواړه ولاړ سول. دا مهال ئې عبدالرحمن او شېرخان وليدل چې لا هماغسي بې هوښه پراته ول. ارشد وويل: هغوی دواړه دارو درمل او پټۍ ته سخته اړتيا لري. ژر تر ژره ئې کيمپ ته بوزه.

څو کسانو فوراً دواړه بې هوښه زخميان راواخيستل او په دې ډول ټول پوځيان مخ پر جبل سراج روان سول.

جبل سراج له دې ځايه دوه ـ دوه نيم ميله ليري وو. لاره ټوله غرنۍ وه. دوی کرار کرار حرکت کاوه څو چې خپلې چونۍ ته ورسېدل. هلته په مجردي رسېدو سره ئې دغه دواړه زخميان په يوه ډېره ښه خونه کي په آرامۍ سره پر بسترو څملول او ډېر ژر ئې ډاکټر راوغوښت. ډاکټر هم راورسېد او دواړه زخميان ئې ښه پاک کړل او بيا ئې پسي پټۍ او پانسمان کړل. څه ګړۍ وروسته شېرخان او عبدالرحمن دواړه پر هوښ راغلل او خپل پوځي انډيوالان ئې وليدل.

په خونه کي ډېره روښنايي وه . دواړو ته نږدې ارشد او اشرف پر څوکيو باندي ناست ول. شېرخان هغوی دواړو ته په مشکورانه ډول وکتل او بيا ئې داسي وويل: زه او عبدالرحمن دواړه ستاسو ښاغلو څخه ډېره ډېره منته کوو. موږ د پېژندګلوۍ په خاطر غواړو چي ستاسو سره معرفي سو.

اشرف ورته وويل چي د منني خبره نه ده. موږ پر تاسو هيڅ احسان نه دئ کړی بلکي خپل انساني مسئوليت مو پر ځای کړ. دغه ارشد اغا دئ، او زه ئې مرستيال يم چي اشرف نومېږم.

شېرخان: ارشد زويه ! ما ستا ډېر صفت اورېدلی دئ خو نن مي په سترګو وليدلې. په خدای قسم چي ته ډېر نېک، زړه ور او خواريکښ ځوان معلومېږې. د شپې په دغسي يخ او توند باران کي ځنګه هلته راورسېدې؟

ارشد د خان د ستاينې په اورېدو سره لږ وشرمېد. ځکه هغه ځوان وو، يعني تازه ځوان چي حتی ږيره ئې لا هم پوره نه وه راغلې. برېتونه بې لږ لږ رابښکاره سوي وه. ډېر ښايسته او خوش طبعه ځوان وو. ګردی پرتوګ ئې اغوستی او تر زنګنو پوري ئې کرتۍ وه او د هغه له پاسه ئې وريښمين جاکټ اغوستی وو. پر سر ئې خولۍ وه او پر هغه ئې ځکه پټو پېچلی وو چي ډېر ساړه وو.

ارشد د اور يوې انګېټۍ ته ناست وو. د اور لمبو د ده ښايسته مخ ځلاوه چي له امله ئې دی نور هم ښکلی او نوراني معلومېدی. غټو غټو سترګو ئې له شرمه کښته کتل. ده په ځواب کي ورته وويل چي محترم مشره! له کومه وخته چي بچهٔ سقاو په دې سيمه کي رابښکاره سوی دئ افغان حکومت هم له هماغه وخته دلته رالېږلی يم. زه هره ورځ د جبل سراج په شاوخوا کي حتماً يوې خوا ته وزم. نن تصادفاً هماغه خوا ته درغلم او هلته د دغه ناوړه پېښې سره مخامخ سوم. ظالمو غلو لکه چي ښځي نيولي او بېولي دي.

شېرخان: آيا هغوی ټوله ښځي ورسره بېولي دي؟

ارشد: ما هغه مهال پخپله ضعف کړی وو او بې هوښه وم. خو کله چي پر هوښ راغلم نو تاسو مي وليدلاست. ستاسي روغتيا پالني ته مي لومړيتوب ورکړ او د خپلو ملګرو سره مي دلته راورسولاست. ما ته تر اوسه دا معلومه نه ده چي غلو څوک څوک نيولي او بېولي دي.

شېرخان: ته ځنګه زخمي سوې ؟ آيا ته هم دغو بد بختو غلو زخمي کړې؟

ارشد اغا په دې پوښتنه سره يو څه کښېکښل سو. حيران وو چي د خپلې بې هوښۍ علت ځنګه ورته ووايي. نو هغه وو چي سر بې کښته وځړاوه او داسي بې وويل: چي رښتيا درته ووايم د خپلې بې هوښۍ په علت پوه نه سوم . صرف دومره مي په ياد دي چي پر سترګو مي برېښنا برابره سوه او د هغې سره سم بې هوښه سوم.

شېرخان : برېښنا اکثراً دغسي تأثير لري او يو څوک بې هوښه کوی. آيا د خپلو افرادو څخه به دا معلومه نه کړې چې غلو څوک څوک نيولي او ورسره ببولي دي؟

ارشد د راولاړېدو په حال کي وويل چې زه به ئې همدا اوس معلومه کړم او احوال به راوړم.

شېرخان هغه ودراوه او داسي ئې ورڅخه وپوښتل: زويه! همداسي لڅ دباندي وزې؟ ډېر سخت يخ دئ کمپل پر ځان واچوه.

ارشد هم يو کمپل پر ځان واچاوه او له خوني څخه دباندی ووت. شېرخان دا مهال اشرف ته وويل چې اشرفه! ستا قوماندان ارشد ډېر نيک او ښه انسان رامعلومېږي.

اشرف: هو، ډېر شريف انسان دئ. پر لمانځه ټينګ دئ او روژې هم نيسي.

شېرخان: د ده په مزاج او خوی کي شرم هم ډېر نغښتی دئ.

اشرف: شرم خو ئې دومره ډېر دئ چې د چا سره د خبرو پر مهال هغه ته سترګي نه سي نيولای.

شيرخان: همدا علت دئ چې دغه ځوان وروسته وروسته ډېر راباندي ګران سو.

اشرف: د ده سره چې څوک يو وار خبري وکړي بس ژر ورباندي ګرانېږي. د پوځ لوی افسران له ده څخه ډېر راضي او خوشحاله دي. علياحضرته ملکه ثريا هم پر ده باندي ډېره مهربانه ده او ښه پام پر کوي.

شېرخان: دغه ځوان ډېر زړه ور او غيرتي هم رامعلومېږي.

اشرف خان: هو! بيخي ډېر. که ما نه منع کولای نو تر همدا اوسه به د بچهٔ سقاو سره جنګېدای.

شېرخان: هو، شجاعت او غيرت همداسي وي.

اشرف: تر اوسه حکومت پر بچه سقاو باندي د پوځي حملي اجازه نه ده راکړې نو ځکه دی بله چاره نه لري. هره ورځ راپور پر راپور ورلېږي خو ځواب ئې نه راځي.

شيرخان: د حيرانۍ خبره ده! آخر حکومت ولي داسي زړه نا زړه دئ؟

اشرف: اعليحضرت غواړي چې هغه د خپل شاهي مرحمت او لطف له مخي معاف کړي.

شېرخان: زما په خيال خو دا يوه غلطي ده. په دې کار سره غل نور هم تشويق کېږي او جرأت اخلي.

اشرف: هو همداسي ده. هغه اوس ډېر جرأت اخيستی دئ. خپل کسان ئې هم کرار کرار ډېر کړي دي. داسي اندېښنه ده چې مبادا يو وخت مخامخ او معلومداره ښورښ و نه کړي.

شېرخان په حيرت او تعجب سره وويل چې اعليحضرت د هغه په هکله ولي داسي ځنډ کوي؟ اوس هغه يو عادي غل دئ، که ستا د خبري پر اساس يو وخت د هغه قوت زيات سي او ښورښ وکړي نو حتماً به ډېري ويني توی سي.

اشرف: داسي آوازې رارسېږي چې پيرانو او ملايانو همدا اوس هم لږ لږ ښورښ راپيل کړی دئ. د شوربازار ملا د هغوی مشري کوي. ښايي اعليحضرت به په دې فکر وي چې اول د ملايانو ښورښ آرام کړي.

شېرخان: افغانان عموماً بې سِواده دي، خورا لږ کسانو تعليم کړی دئ. که هغوی تعليم يافته وای نو دا ورمعلومېده چې نن ئې هيواد څومره پرمختګ کوي.

اشرف غوښته چې يو څه ووايي، خو نابېره ارشد خوني ته راننووت. د هغه تر شا دوې مخ پټي ښځي هم وې. ارشد د شېرخان خوا ته نږدې راغی او داسي ئې وويل: محترم مشره! له ګروپونو څخه رامعلومه سوه چې غلو دوې نجوني نيولي او ورسره ببولي دي.

شېرخان سخت فکرجن او غمجن سو. په درېدلي آواز ئې وويل: کاشکي چې د دې بد خبر تر اورېدو مخکي مړ سوی وای.

دواړي نقاب لرونکي ښځي رامخته سوې، له غم او قهره ئې غاښونه چيچل او غړمبېدې. داسي معلومېده چې هغوی دواړي ژاړي. عبدالرحمن دواړو ښځو ته وويل چې پر څوکيو باندي کښينئ. وروسته ئې شېرخان ته وويل چې قدرمن وروره! پر موږ باندي د غره په اندازه

غم نازل دئ. زموږ بېګناه نجونې په زوره تېښتول سوي دي. خو موږ باید د غم او فراق پر ځای د هغوی د خلاصون په باره کې فکر وکړو.

شېرخان: موږ خو زخمیان یو. ښایي پوره یوه هفته هم له بستره د ولاړېدو توان و نه لرو. نو موږ څه کولای سو؟

ارشد یو څه احساساتي سو او داسې ئې وویل: تاسې ډاډه اوسئ. سبا ګهیځ به زه ان شاء الله د بچه سقاو پر پټنځي باندې حمله وکړم.

شېرخان: ژوندی اوسې ننګیالی ځوانه! نور نو زموږ د امید سترګې همدا تا ته دي.

ارشد: تر څو چې خدای کومک راسره و نه کړي، زه هیڅ هم نه سم کولای.

عبدالرحمن: خدای به ستا مرستندوی وي. اوس استراحت وکړه، ځکه د ماښام راهیسې پرله پسې زحمت او تکلیف کوې.... سهار د خیره سره. ارشد د هغه خبره قطع کړه او داسې ئې وویل: سهار به د بچه سقاو پر خوا وخوځېږم. زما هیڅ زړه نه غواړي چې تاسو په دې حالت کې پرېږدم او پخپله استراحت وکړم. صرف د دغو مشرو ښځو خیال ساتم او دا دئ در څخه رخصتېږم. ځکه هغوی زما په سبب په تکلیف دي.

شېرخان: نه، هغوی هیڅ په تکلیف نه دي، بلکې ستا د تکلیف په فکر کې یم.

ارشد: ما ته هیڅ تکلیف نه دئ، خو ورتګ مې لازم دئ.

شېرخان: ښه، نو د خدای په امان.

ارشد: پر خدای مې سپارلی یې.

ارشد او اشرف سلام وکړ او رخصت سول. کله چې دواړه دباندې ووتل نو ښځو هم خپلې چادرې ایسته کړې. دواړو ښځو پاخه عمرونه لرل. د دواړو څېرې تازه او رنګونه ئې سره او سپین ول. همدا اوس لا هم د هغوی صورتونه جذاب ول. هغوی دواړو ژړل. سترګې ئې له ډېرې ژړا څخه تکې سرې سوې وې. شېرخان په هغوی کې یوې ته وکتل او داسې ئې ورڅخه وپوښتل: بانو! ته ژاړې؟

د شېرخان د مېرمنې نوم مِهربانو وو، خو مېړه ئې له نازه بانو ورته ویل. بانو دا ګړی پټه خوله ناسته وه خو اوښکې ئې تویولې. بس د مېړه په دې خبره ئې په نسبتاً لوړ ږغ ژړا پیل کړه. هغې د ژړا په حال کې داسې وویل: آه، زه خو تباه او برباده سوم. های، زما حسن جهاني لور... په دې سره د هغې آواز نور هم لوړ سو او له سترګو څخه ئې د اوښکو توپان جاري سو. د شېرخان او عبدالرحمن دواړو سترګې یو څه لندې سوې. شېرخان د اطمینان او دلاسایي په توګه ورته وویل چې بانو! استقامت او صبر وکړه. که خدای ما، تا او حسن جهاني ته ژوند راکړی وو نو ضرور به بیرته سره یو ځای سو.

مِهربانو: کاشکې دغو خبیثو غلو زه وژلې وای. های، له ډېره غمه مې زړه دربېږي.

عبدالرحمن: محترمې! صبر او شکر وکړه.

مهربانو: صبر! هیڅ امکان نه لري. آه، په کوم زړه به صبر وکړم؟

شېرخان: خامخا باید صبر وسي. خدای موږ امتحانوي. موږ باید په بې صبرۍ سره خدای ناراضه نه کړو.

مهربانو: بس یوازې له خدایه بېرېږم نو ځکه مې تر اوسه ځان ټینګ کړی دئ. یا لویه خدایه! صبر راکړه. های، زړه مې دربېږي، بدن مې بې سېکه کېږي. آه، څنګه ځان ته استقامت ورکړم؟

مهربانو په دې خبرو سره په زوره وژړل. د شېرخان تر سترګو هم اوښکې جاري سوې.

دا غم خو د مهربانو پر زړه او دماغ باندې تېرېږي دا ځکه چې هغې صرف همدا یوه لور درلوده او هغه هم د بچه سقاو غلو وتښتوله. هر چا به دا ویل چې که څوک د بچه سقاو په منګلو ورسي بیا ئې خلاصون امکان نه لري.

د ډېري او پرله پسې ژړا له امله د مِهر بانو ستونی وچ سو او آواز ئې تر خولې سم نه سو وتلای. د شېرخان هم ګرېوان په اوښکو لوند سو او لږ ګړی وروسته ئې وویل: بانو! مه ژاړه، د خدای له پاره مه ژاړه. ستا د دې ژړا په لیدو سره زما زړه له کوګله راوزي. زه زخمي سوی یم. خدای مجبور او لاچاره

کړی یم. لطفاً زما پر زخمو باندي مالگه مه پاشه. لکه څنگه چي ما خپل زړه ټینگ کړی دئ ته هم خان دغسي ټینگ کړه.

مِهر بانو سوړ اسوېلی وکیښ او داسي ئې وویل: زه هم صبر کوم، خدای دي د صبر طاقت راکړي. زه یوه افغانه یم، او څکه متأسفه یم چي ولي مي اوښکي داسي بهېږي. په دې سره زه خان یو څه سپک احساسوم. زه باید د نارینه غوندي خان ته استقامت ورکړم. بس اوس به نور نو خان ټینگوم او صبر به کوم او دا کوښښ به کوم چي د بچهٔ سقاو څخه خپل غچ واخلم.

شېرخان د خپلو اوښکو د وچولو په حال کي وویل چي مرحبا! افغاني مېرمن! مرحبا! ته خو د هغه کورنۍ ښځه یې چي ښځي ئې د نارینه وو سره اوږه پر اوږه جنگېږي. سبا له وخته به ارشد په بچه سقاو پسي ورووزي. که زه سم وای نو هرومرو به ورسره تللم او ته به مي هم راسره بېولای. لاکن اوس زخمي یم او ته مي غمخوري کوې. نو څکه دواړه ته سو تللای. موږ باید د ارشد د بریالیتوب له پاره دوعاوي وکړو.

مِهر بانو: هو، حتماً باید دوعا ورته وکړو. ارشد ډېر نېک، لایق، زړه ور او تکړه ځوان دئ. ډېر ښه هلک دئ. که څه هم غم او رنځ له پښو واچولم، نابېره زیان او مصیبت ټوله قوت او د بدن شومه راڅخه ایستلې ده، خو له کوم وخته چي مي ارشد لیدلی دئ، په زړه کي خورا ډېر راباندي گران سوی دئ. زړه مي راته وایي چي ارشد به زما حسن جهاني ته نجات ورکړي او رابه ئې ولي.

شېرخان: هو ان شاء الله. ارشد پر ما هم کټ مټ د خپل زوی غوندي گران سوی دئ. دی سبا سهار په بچه سقاو پسي ورځي. زړه مي راته وایي چي زه هم ورسره ولاړ سم، خو نه سم کولای. مِهر بانو غوښته چي څه ووایي مگر خادمه یعني مزدوره راغله او مِهر بانو ته ئې داسي وویل: ستا او د دې (اشاره ئې د عبدالرحمن مېرمني ته وه) له پاره په مخامخ خونه کي د شپې تېرولو بندوبست سوی دئ. تاسي لطفاً هلته ورسئ او استراحت وکړئ.

مِهر بانو له خادمي څخه وپوښتل چي آیا دا انتظام ارشد کړی دئ؟

خادمه: هو! هغه کړی دئ.

مِهر بانو: هغه پخپله په کومه خونه کي بیدېږي؟

خادمه: هغه پوځیانو ته د یو څه هدایت ورکولو له پاره هلته ورغلی دئ.

مِهر بانو: آیا دی هره ورځ هلته ورځي؟

خادمه: یا، څنگه چي سبا سهار وختي پر بچه سقاو باندي د حملې له پاره ځي نو څکه یو لږ هدایتونه ورکوي.

مِهر بانو: د ارشد پر زړه باندي دغه ستري پېښي ډېر ژور اثر کړی دئ.

خادمه: هو! ډېر ژور اثر. هغه سخت اندېښمن او غمجن دیئ. نن ئې حتی ډوډۍ هم نه ده خوړلې.

مِهر بانو: افسوس! زموږ په خاطر دومره تکلیف پر خان تېروي. کله چي هغه راسي نو ما ته ئې راولېږه.

خادمه: نو تاسو نه غواړئ چي استراحت وکړئ؟

مِهر بانو: یا، اوس نه. تر هغو نه بیدېږم څو چي زما کوربه ډوډۍ نه وي خوړلې. تر هغه وروسته به استراحت وکړم.

خادمي سلام وکړ او رخصت سوه. مِهر بانو دا مهال شېرخان ته ووېل چي ودې لیدل؟ ارشد زموږ د راپېښ مصیبت له پاره خپل آرام هېر کړی دئ.

شېرخان: له څېرې څخه ئې ښکاري چي د هر مصیبت ځپلي د درد او غم احساس ورسره سته. ډېر شریف ځوان دئ.

مِهر بانو: هو، بې نهایته شریف، نېک او خواخوږی انسان دئ.

د دوی خبري رواني وې چي هلته ارشد دباندي رغ وکړ او داسي ئې وویل: آیا د دننه راتلای سم؟

مِهر بانو شېرخان ته په دې فکر وکتل چي باید له دې ځایه وپاڅېږم او بلي خونې ته ولاړه

سم، یا دا چې چادرې وکړم.

شبرخان د هغې په مطلب پوه سو او داسې ئې ورته وویل: زما په خیال ارشد زما او ستا د زوی پر خای دئ، نو ولې مخ څنې پټوې؟ خو د عبدالرحمن ورور مېرمن که مخ پټوي بده نه ده.

عبدالرحمن: هیڅ ضرورت نسته. ارشد خو اومه خوله هلک دئ، بر پتو ئې تازه خط وهلی دئ. د هغه څخه څوک مخ پټوي؟! ورناري کړه چې راسي. شبرخان هم په لوړ ږغ ور ناره کړه چې ارشد زویه! ارشد له دباندې څخه ځواب ورکړ چې بلې، ها! زه یم، آیا د ننه راتلای سم؟

شبرخان: هو، راځه.

ارشد هم خونې ته راننووت. مهر بانو او د عبدالرحمن مېرمن ئې بې پردې (بې ستره) ولیدلې چې مخامخ ناستې وې. سترګې ئې کښته واچولې او لږ شېبه همداسې ولاړ ودرېد. بیا ئې فکر وکړ چې شاید سم نه وي پوه سوی، او خونې ته د ننوتلو اجازه به نه وي ورکول سوې. نو ځکه فوراً بیرته پر شا روان سو. شبرخان چې د ده بیرته شاتګ ولید، نو ږغ ئې پر وکړ چې های، چیرې بیرته ځې زویه! راځه، راځه.

ارشد هم بیرته راوګرځېد او په داسې حال کې چې سر ئې کښته ځړولی وو، ځواب ورکړ: ما چې دغه محترمه مېرمن ولیده نو فکر مې وکړ چې ښایي ما ته به د راننوتلو اجازه نه وي سوې.

شبرخان د هغه خبره غوږ کړه او داسې ئې ورته وویل: دا دواړې مېرمنې ستا د مور پر خای دي. راسه زما سره دلته کښېنه.

ارشد هم نږدې راغی مهر بانو او د عبدالرحمن مېرمنو ته ئې سلام وکړ او د شبرخان څنګ ته کښېناست. شبرخان ورته وویل چې ارشده! آیا تر اوسه دې لا استراحت نه دئ کړی؟

ارشد: استراحت؟ زه به څنګه آرام وکړم چې مشران مېلمانه مې داسې په تکلیف دي.

شبرخان: ستا له وجه مور هیڅ هم نه یو په تکلیف. ته دمه وکړه، ځکه سهار له وختنه پوځي سوقیات لرې.

ارشد: سوقیات؟ کاشکې زه د یو دښمن پر ضد عملیاتو ته روان وای، خو متأسفانه زه د یو غله د څېړنې له پاره څم. ګران مشره! زما څخه یو غفلت سوی دئ، هیله ده چې معاف مې کړئ.

شبرخان په حیرانۍ سره ارشد ته وکتل او وئې پوښتل: کوم غفلت در څخه سوی دئ؟ ارشد: د ډوډۍ په تیارولو کې یو څه ځنډ پېښ سوی دئ. خو اوس ډوډۍ تیاره ده، که ستاسو امر وي نو راوبه ئې غوارم.

شبرخان: واه واه! د دې غفلت له امله ته افسوس کوې، زویه؟! په مور کې خو یو لا هم وږي نه معلومېږي.

ارشد: لاکن زما دا هیله ده چې تاسو ډوډۍ نوش جان کړئ.

شبرخان: زویه، زمور هیڅ خوا ته نه کېږي.

مهر بانو پر شبرخان داسې ږغ وکړ: تا وا نه ورېده چې ارشد هم ډوډۍ نه ده خوړلې؟ که ته یو څه وخورې نو دی به ئې هم درسره وخوري.

ارشد بې له ځنډه وویل چې زه... زه بالکل نه یم وږی.

شبرخان: دا نه سې کېدای، مور به ئې هم خورو او ته به ئې هم راسره خورې.

دا مهال دوو مزدورانو دسترخوانونه او ډوډۍ راوړل. سالنونه او اوړل سول. ټولو ترینه او ښځینه کسانو پر یوه دسترخوان ډوډۍ وخوړله. کله چې ډوډۍ وخوړله سوه نو مزدورانو پاته سوي خواړه واخیستل او دباندې ئې یووړل. څنګه چې ډېر ناوخته سوی وو، نو شبرخان وویل چې: ارشده! اوس ورځه ارام بیده سه.

ارشد هم بې له ځنډه ولاړ سو، د دې خونې څخه یوې بله خونې ته روان سو او هلته پر یو کټ باندې پر پووت.

دا خونه یو څه کوچنۍ وه، غټ لالټین (الیکېن) څراغ پکښې بل وو. اشرف پټه خوله وو، خو ارشد لټ پر لټ اووښتی. کله چې دغه لټ پر لټ اوښتلو دوام وکړ، نو اشرف ورڅخه وپوښتل چې آیا خوب نه درځي؟

ارشد ژوره ساه واخیسته او د ساړه اسویلې

په ترځ کې ئې خواب ورکړ چې يوې دلربا مې خوب، آرام او هر څه وړي دي.

اشرف وخندل او ورته ويې ويل چې د زړه بايلنه هم ډېر بد شی دئ.

ارشد: هو بې شکه! هغې زما په زړه کې دننه ځای نيولی دئ او زړه ته مې يو عجيبه حرکت او سرعت ورکوي. زه ئې هيڅ نه سم بيان کولای، يو عجيبه خوږ درد لري.

اشرف: موږ سبا سهار عملياتو ته ځو. د شپې دوې برخې خو تېرې سوې دي، که يو څه اطمينان او فرصت حاصل کړې او لږ آرام وکړې نو ښه به وي.

ارشد: زه خو غواړم چې آرام وکړم لاکن دغه بندي سوی زړه مې آرام ته نه پرېږدي.

اشرف: ځېل کوښښ خو وکړه.

ارشد: ډېر کوښښ کوم لاکن...

دا مهال دواړه چپ سول. دوی چې آرام سول نو هره خوا آرامه او چوپه چوپتيا خپره سوه. د شپې دغه لږ دمه ډېره ښه سوه. د شپې په خپرېدو سره د خدای ټول مخلوق آرام ول.

شېرخان، عبدالرحمن، د هغه مېرمن او مِهر بانو ټوله بيده ول. کله چې د ارشد سترګې خلاصې سوې، نو د لمر زرينې وړانګې د ده پر منور مخ راپرېوتلې وې او يو ډول ځلائې ورکوله. اشرف لا په خواږه خوب بيده وو. ارشد راولاړ سو او پر اشرف ئې ږغ وکړ څو چې هغه هم راويښ سو.

اشرف چې سترګې وغړولې او د لمر کمزوره وړانګې ئې وليدلې، ويې ويل چې اوهو! لمر خو راختلی دئ، افسوس چې د سهار لمونځ رابانديه قضا سو.

ارشد: راځه، ژر لمونځ ادا کړه او چمتو سه.

اشرف: هو، درځه.

دواړه راولاړ سول، خپل خپل حاجات ئې رفع کړل، لمونځونه ئې ادا کړل او شېرخان ته ورغلل. شېرخان او عبدالرحمن ويښ سوي ول. دوی دواړو هغوی ته سلام واچاوه. هغوی هم دوعا ورته وکړه. ارشد دا وخت شېرخان ته وويل چې زه په بچهٔ سقاو پسې ورځم، دوعا راته کوه چې خدای مې کامياب او په مراد کړي.

شېرخان: ان شاء الله چې د فتحې او نصرت سره به راستون سې.

ارشد: ما خپلو افرادو ته هدايت کړی دئ. هغوی به زموږ تر بېرته راتګ پورې ستاسې مېلمه پالنه او خدمت کوي. هر شي ته چې مو هر کله ضرورت وي، فوراً ئې ترې وغواړئ.

شېرخان: زويه! زما په زړه کې ستا مهربانيو، نېکيو او زړه ورتوب ځای نيولی دئ، الله دې سلامت لره.

ارشد او اشرف دواړه له خونې څخه راووتل. دواړو څو ګامه نه ول اخيستي چې شېرخان ارشد ته وربږغ کړه. په دې سره ارشد بېرته خونې ته ور روان سو. مِهر بانو چې د شېرخان سره ناسته وه د ارشد خوا ته راولاړه سوه او داسې ئې ورته وويل: ارشده! ته زما د زړه په ټوټه پسې ځې او هغه لټوې. نو خدای دې بريمن کړه. زويه! زما په زړه کې ستا الفت او محبت کور جوړ کړی دئ. تا ته به ډېرې دوعاوې کوم. نن دلته ستا مور نسته. هغه نېکبخته به چيرې وي....

دا مهال ارشد د هغې خبره قطع کړه او ورته وئې ويل چې هغه په کابل کې ده.

مِهر بانو: دلته نن زه ستا د مور پر ځای يم، زه به په تا پسې خيرات وکړم. مِهر بانو يو څه پيسې په لاس کې نيولې وې او د ارشد له سره ئې وګرځولې او هغه ته ئې د ورکولو په ترځ کې وويل: واخله، دا پيسې د باندې فقيرانو ته ورکړه.

ارشد هم روپۍ څنې واخيستې او مِهر بانو د هغه بلا دفع کړه. ارشد له خونې څخه راووت او د باندې اشرف ورته منتظر وو. وروسته دواړه مخ د کيمپ پر خوا روان سول. کيمپ له دې ځايه ليرې نه وو. دواړه ډېر ژر هلته ورسېدل. هلته هغوی وليده چې قطار ئې حرکت ته تيار ولاړ دئ. پوځيانو د دوی دواړو په ليدو سره سلامي ورته وکړه. دوی دواړه هم ژر ژر مسلح سول. د دوی له پاره اسونه راوستل سول او دواړه پر سپاره سول. په دې ډول ټول پوځيان د کوهدامن خوا ته روان سول.

نور بيا ...

لیکوال: استاد م. معصوم هوتک/کاناډا

# د غره او د وره

سبا چې د جمعې ورځ، پنځمه د اګست ۲۰۱۱ع = ۱۴مه د زمري ۱۳۹۰هـ ش= پنځمه د روژې ۱۴۳۲هـ ق کېږي، زما د کار وروستۍ ورځ ده او پسله دغې نېټې څخه مې د تقاعد (retirement) دوره شروع او عمر مې په عیسوي حساب څلورشپېته کاله و پنځه میاشتې و پنځه ویشت ورځې کېږي. د کاناډا په قوانینو کې د تقاعد سن پنځه شپېته کلني ده، خو څوک تر دغه سن دمخه هم تقاعد اخیستلای سي. په کار کې ئې د مینیجمنټ د دفتر او د بورډ آف ډایریکټرز له خوا د خدای پاماني مراسم راته ترتیب کړي دي. نن هم ټوله ورځ د کانډومینیوم اوسېدونکي یو په بل پسې راکښته کېدل او خدای پاماني ئې راسره کوله. د خلکو دغه صمیمیت مې پر زړه ښه لګېدی او داسې راته ایسېدله چې دوی زما له کاره څخه ډېر راضي ول. هر یوه د زړه له کومي څخه د (I will miss you)، (all the best) جملې راته تکرارولې. له پرون راهیسې ئې پر بولیټن بورډ باندې او په ایلیویټرونو کې دغه پاڼې ځوړندې کړې دي.

***

ما تقریباً دوولس کاله پرله پسې د (Morguard Residential) کمپنۍ، د (Village Terraces) کانډومینیوم د اداري غړو په ډله کې، چې شپږ تنه وه، د (Site Superviser) په توګه کار وکړ. دغه کمپنۍ په انټاریو ایالت کې خورا ډېر د استوګې تعمیرونه لري چې کورونه ئې د ځانګړو خلکو خپل ملکیت دئ خو اداره او مینیجمنټ ئې د کمپنۍ له خوا کېږي.

دغه کانډومینیوم چې ما کار پکښې کاوه، په مسیساګا کې واقع دئ.

د دې ځای خلک تر تقاعد دمخه ځان ته د ژوند پلان جوړوي. یو دم پر کور باندې بېکاره کښېنستل، پر روغتیا باندې بده اغېزه کوي. خو زموږ افغانانو لکه د ژوند نورې چارې چې مو بې پلانه او بې پروګرامه پر مخ ځي، تقاعد مو هم دغه شان بې له مخکیني پروګرامه پیل سي. ما ځان ته د ژوند د وروستیو کلونو له پاره په فرهنګي برخه کې داسې پروګرام ټاکلی دئ:

- خاطرات به لیکم.
- د رشاد مرحوم آثار به ترتیبوم.

- خپل نیمگړي آثار به تکمیلوم.
- که مې وخت موند، ترجمې به کوم.

په نورو برخو کې به:

- سفرونه کوم (که ممکن ول).
- سپورټ به کوم.

***

زه محمدمعصوم هوتک د حاجي محمود هوتک زوی د حاجي عبدالغني مشهور په حاجي اکولالا لمسی د حاجي محمدعمر کړوسی د ملا موسی کوسی او د لوی نیکه محبت خان هوتک کودی یم. مور مې حلیمه نومېدله چې د مولوي صالح محمد هوتک لور د فیض محمد لمسۍ د حاجي محمداکبر هوتک کړوسۍ د ملاموسی کوسۍ او د لوی نیکه محبت خان هوتک کودۍ وه.

په کاناډا کې زما د زېږېدني نېټه (د فبرورۍ لسمه ۱۹۴۷ع) ده چې که په هجري شمسي باندي واړول سي، د ۱۳۲۵ش کال د سلواغې د دوهمې نیمايي له پيل سره برابرېږي. خو زما د تولد نېټه چې زما د پلار پخپل قلم لیکلې سوې ده، دوشنبه د دلوې شپاړسمه ۱۳۳۶ش ده، چې په دې حساب نو کاناډا ته زما د راتګ په وخت کې زما د زېږېدلو نېټه له هجري شمسي نېټې څخه په میلادي نېټې باندي د اړولو پر مهال سمه محاسبه سوې نه ده او نژدې یو کال وړاندي تللې ده.

زه د کندهار ښار د ملاګلداد کوڅې په هغه کور کې زېږېدلی یم چې زما د پلار د مورني نیکه حاجي محمداکبر هوتک (۱۸۲۲ - ۱۸۹۹ع) په لاس ودان سوی دئ او اوس (۱۴ اګست ۲۰۱۱ع) هم ولاړ دئ او د حاجي محمداکبر هوتک د زوی حاجي احمدعلي زوی او لمسیان پکښې اوسي. زما پلار له زلمیتوب څخه د خپل ماما، د حاجي محمداکبر هوتک د زوی عبداللطیف هوتک مشهور په لالکو تر روزني او پاملرني لاندي وو او د خپل پلار په ژوند کې لا له همدغه ماما سره یو ځای اوسېدی. زما د مور او پلار واده په همدغه کور کې سوی وو.

زموږ کورنۍ عنعنه داسې وه چې د کوچنیانو نومونه زما مورني نیکه مولوي صالح محمدخان هوتک ایښوول. مولوي صاحب که به په کابل کې هم اوسېدلی، د نامه په ایښوولو کې به ئې سلا ورسره کوله. زما د زېږېدني پر وخت مولوي صاحب په کندهار کې وو. وايي چې زما د نامه ایښوولو مراسم ئې د حاجي محمداکبر هوتک په "لوی دالان" کې جوړ کړي ول. د کورنۍ مشران ئې ټول رابللي ول چې په هغو کې د حاجي محمداکبر هوتک زامن (زما د پلار ماماګان)، عبداللطیف هوتک (لالکو)، حاجي محمدعثمان هوتک، حاجي احمدعلي هوتک، زما اکاګان حاجي عبدالباقي، حاجي عبدالعلي، حاجي عبدالمجید، حاجي عبدالحمید، هم شامل ول. د نامه ایښوولو پر وخت د مولوي صاحب له خوا (محمدمعصوم) پیشنهاد سو. زما مشر اکا (تره) حاجي عبدالباقي یو بل نوم وړاندي کړ. د حاضر مجلس رایه وغوښتل سوه. مجلس د قرعه کشۍ وړاندیز وکړ او په قرعه کې (محمدمعصوم) راوخوت. وايي په دغه وخت کې حاجي عبدالباقي مرحوم خپل مشر زوی مولانا عبدالباري ته چې په دغه وخت کې ئې د دیني علومو تحصیل تقریباً بشپړ کړی وو، مخ واړاوه چې دوعا وکړي، مولانا عبدالباري د نورو دوعاوو پر څنګ داسې دوعا هم وکړه چې: "اَللّهُمّ كَمَا سَمَّيتَهُ مَعصُوماً، فَاجعَلهُ مِنَ المَعصُومين". حاضر مجلس پر دغه دوعا باندي تحسینونه ورته وویل. زه امید کوم چې ګوندي زما د اکا د زوی مولانا عبدالباري دغه دوعا به قبوله سوې وي. مولانا

عبدالباري صاحب اوس (د ۲۰۱۱ع کال د اگسټ شپږمه) په کراچي کې اوسي. زموږ په کورنۍ کې دم درحاله تر ده مشر څوک نسته. خدای دې نور هم ژوندی او په عزت لري (آمین).

زه د پلار مشر زوی او دریم اولاد یم. تر ما دوې مشرانې خویندې وې چې اوس دواړې مړې دي. یوه په کوچنیوالي او بله په پنځوس کلنۍ کې. دوه وروڼه مې (محمدداود او میرویس) او درې خویندې مې (حمیرا، زهرا او شافعه) اوس ژوندي دي.

زما تر څلور کلنۍ پورې مې پلار له خپلو ماماگانو سره په همدغه د حاجي محمداکبر په کور کې اوسېدی. په دغه کور کې زما د زېږېدلو پر وخت عبداللطیف هوتک او مېرمن ئې (هزارې مور) او لور ئې (هزاره)، حاجي محمدعثمان، حاجي احمدعلي دوې لوڼې ئې (بي بي گله امینه او صفیه) او زوی ئې عبدالحکیم، خور ئې بي بي زینبو اوسېدل.

عبداللطیف هوتک مې په حافظه کې ډېر پیکه پاته دئ او د دې نورو د هماغه وړکتوب د وختو یادونه راسره دي. دوی ټولو نر او ښځو زه ډېرنازولی یم پر ما ئې د ناز د ادیني حق پاته دئ. له دغو کسانو څخه اوس (اگسټ ۲۰۱۱ع) عبدالحکیم ژوندی دئ او په هماغه کور کې له خپلو زامنو سره اوسي. بي بي گله په ټورنټو کاناډا کې له خپلو اولادو (پنځه لوڼې درې زامن، درې مړندې او څو لمسیان) سره اوسي.

د ۱۳۳۰ش = ۱۹۵۱ع کال په دوبي کې مې پلار او درو نورو اکاگانو (حاجي عبدالحمید، حاجي عبدالمجید او عبدالهادي) په گډه سره له خپلو ماماگانو څخه د هغوی یو بل سرای چې د دغه کور په جنوب ختیځ کونج کې واقع وو، په بیه رانیوی او له سره ئې ودان کړ. دغه نوي کور ته موږ په ۱۹۵۱ع کال ورکډه سوو. په ملا گلداد کوڅه کې دغه سرای په سپین سرای سره مشهور سو. تر سږکال (۲۰۱۱ع) پورې لا زما د اکا زوی حاجي نجیب الله پکښې میشت وو. څه موده مخکې ئې پر یو چا خرڅ کړ. په سپین سرای کې تر ما وروسته نور ټول وروڼه، خویندې او د اکا زامن او لوڼې زېږېدلي دي. دا کور که د افغانستان حالات خراب نه وای، باید زموږ د خاندان د یوه غړي په لاس کې پاته وای.

ما د عمر پراته کلنۍ قرآن عظیم پر خپل اکا حاجي عبدالعلي چې موږ "کاکا" باله، ختم کړ. وروسته مې نور دیني کتابونه پر ملا محمد نور اخند، ملا محمد قاسم اخند چې دواړو زموږ په بازار کې د عطارۍ دوکانونه درلودل، ویلي دي . ملا محمدنور اخند د مرحوم عبدالباري خان اشنا پلار او د کندهار ولایت د پخواني مرستیال شهید انجنیر اشنا نیکه وو. دی د کندهار په لوی بالاکرز کې اوسېدی او هره ورځ به په کابل بازار کې خپل دوکان ته راتلی. زموږ د کورنۍ مشران به زیاتره د ده پر دوکان کښېنستل. د دیني علومو وروستی استاد مې خپل د اکا زوی مرحوم ملاعبدالسلام اخند وو. پر ده باندې مې فقه او فارسیات وویل.

په نهه کلنۍ کې د مولوي صالح محمد هوتک په لارښوونه د کندهار د ده خوجې لومړنۍ ښوونځي ته شامل سوم (۱۳۳۵ش). څرنگه چې مې کورنۍ تعلیم کړی وو، واردواره ئې په دریم ټولگي کې شامل کړم. د سوېې ازموینه د کندهار یوه پخواني ښوونکي منورشاه خان راڅخه واخیستله او بریالی ئې اعلان کړم. منورشاه خان د کندهار د اهل تشیع اوسېدونکو څخه وو.

په دغه وخت کي د ده خوجې لومړنی ښوونځی د میرویس نیکه د لیسې اړوند ښوونځی وو. میرویس نیکه لېسه د کندهار د اوسني عالي دارالمعلمین په ودانۍ کي وه. دغه ودانۍ اصلاً د میرویس نیکه د لېسې له پاره په ۱۳۱۶ش کال کي د کندهار د هغه وخت د نائب الحکومه شهید سردار محمدداودخان په اراده او امر جوړه سوې ده. کله چي زه ښوونځي ته شاملېدلم، د میرویس نیکه لېسې اداري مشر چي زده کوونکو ورته معاون صاحب وایه، کاکا رازق واصفي وو.

زموږ د دریم ټولګي ښوونکی چي ټول مضامین ئې راته تدریسول، عبدالباقي خان نومېدی. زما په خیال د فراه اوسېدونکی وو. په ونه ګردی په رنګ سیهن سړی وو.

ابتدائیه مي همدلته پای ته ورسوله او په همدې ودانۍ کي مي د لیسې اووم او اتم ټولګی هم بشپړ کړ. کله چي نهم ټولګي ته ورسېدلم (۱۳۴۳ش = ۱۹۶۴ع)، د میرویس نیکه لیسې له پاره په منزلباغ جاده کي نوې ودانۍ جوړه سوه او دغه پخوانۍ تعمیر د کندهار دارالمعلمین ته ورکول سو چي وروسته بیا عالي دارالمعلمین پکښې تاسیس سو.

د میرویس نیکه د لیسې دغه ودانۍ د شورویانو د یرغل په کلو کي چي پر هیواد باندي د جهالت هښمي راخپرې سوې، د "ژړمکتب" په نامه مشهوره سوه او تر ننه ئې لا هم عوام په همدغه نامه بولي.

دغه ودانۍ د کندهار د معارفو د یوه مخلص خدمتګار او فاضل شخصیت، چي زه ئې د شاګردۍ ویاړ لرم، ارواښاد مدیر محمدنبي خان محمدي په لاس تاسیس سوه او لومړی مدیر ئې هم دی وو.

مدیر محمدنبي خان د عالي تحصیلاتو څښتن وو او د فارسي ادبیاتو د تدریس په وخت کي ئې د ټولو مغلقو متونو د حل له پاره د کندهار په معارف کي د مرجع حیثیت درلود. ډېر منور او د عالي اخلاقو څښتن وو. کورنۍ ئې د کندهار د الکوزو په کوڅه کي اوسېدله او د ښار له مشهورو کورنیو څخه ده. مدیر محمدنبي خان محمدي څو کاله وړاندي وفات سو. خدای دې وبخښي.

له لېسې څخه په۱۳۴۶ش = ۱۹۶۷ع کال فارغه سوم او په دا بل کال د کانکور ازموینې څخه تر بریالیتوب وروسته د کابل پوهنتون په حقوقو پوهنځي کي شامل سوم. د ابتدائیې او لېسې په ټولو ټولګیو کي اول نومره وم او د کانکور په ازموینه کي د افغانستان په سطحه کي دریمه درجه بریالی اعلان سوم. د دغي دورې د کانکور ازموینې اول نومره لچمنداس (هندو) او دوهم ئې سیداحمدشاه نومېدی چي دواړه د کندهار د احمدشاه بابا د لیسې فارغین ول. له دغه بریالیتوب څخه څوک د هغه وخت د کندهاري شاګردانو د تعلیمي سویې اټکل کولای سي.

په حقوقو پوهنځي مي دوې درې اوونۍ درس ولووست او تر هغه وروسته مي د لیسې د وخت د خپلو ټولګیوالو په هڅونه د کابل پولیتخنیک انستیتوت ته ځان تبدیل کړ. هورې مي تر دوهم ټولګي پوري د ساختماني انجنیرۍ څانګه په اعلی درجو ولوستله خو له بده مرغه د سږو ناروغي راته پېښه سوه او له تحصیل څخه مي موقتي تأجیل واخیست.

* * *

د ناروغۍ علاج یو کال لا څه زیات ونیو او کله چي مي بیرته انستیتوت ته د تحصیل د دوام په خاطر مراجعه وکړه، اداري ستونزي ئې راته خنډ کړې. که څه هم زما مهربان

استاد اروابناد پوهاند محبي چې په دغه وخت کې د انستیتوت مرستیال وو، زیاته هڅه وکړه چې راته پېښې سوي ستونزي له منځه یوسي، خو د هغه وخت بیروکراسي د ده په حسن نیت ماتبدلای نه سوای. له ناچارۍ څخه کندهار ته په مات زړه راستون سوم او د کندهار په عالي دارالمعلمین کې مي تر کانکور ازمویني وروسته ځان شامل کړ. په دارالمعلمین کې ئې د ساینس څانګي ته واستولم او تر دوه کاله تحصیل وروسته په اول نومره ګي ځني فارغ سوم. د دارالمعلمین د رخصتیو په وخت کې مي له کور سره د مرستي په نیامت په وړوکي تجارت ځان مصروف وساته. په ۱۳۵۲ش = ۱۹۷۳ع کال د سرطان په میاشت کې جرمني ته په تجارتي سفر د ایران، ترکیې، بلغاریې، یوګوسلاویې او اتریش له مځکنۍ لاري ولاړم. په دغه ورځ چې له هراته د اسلام کلا پر لار ایران ته وتلم، په افغانستان کې سردارمحمدداودخان کودتاه وکړه او جمهوریت ئې اعلان کړ. د هرات په ښار کې مي د قادري شرکت په نمایندګي کې ښاغلي فرزان ته چې کابل ته په سفر روان وو، د جمهوریت د راتلو له اسیته مبارکي وویله او ما خپل سفر ته ادامه ورکړه. سفر یوه میاشت ونیوله او تر راتګ وروسته راته معلومه سوه چې تر تجارت مي د تحصیل د ادامې مینه غالبه وه. څه موده مي د عالي دارالمعلمین د درسو پر څنګ په کندهار کې د بربښنا د امریکایي انجنیر مسټر ډیویني دوو زامنو (رابرټس او پاول) ته د کورني ښوونکي په توګه کار وکړ. دې دوو امریکایي هلکانو د (Home Study Institute) تر پروګرام لاندي خپل درسونه تر امریکا دباندي په افغانستان کې تعقیبول. دا پروګرام د هغو امریکایي اتباعو د اولادو له پاره ټاکل سوی وو، چې پلرونو ئې تر امریکا دباندي وظایف درلودل. دې انستیتوت ما ته ټول درسي پلان او مواد رالېږل او ما بیا دغو دوو هلکانو ته تدریسول. مشکلات مې ورحلول او ازموینه مي د انستیتوت له لارښووني سره سمه ځني اخیستله. د ازمویني پاڼې مي ورلېږلې او د کامیابۍ اوناکامۍارزیابي ئې دوی پخپله کوله. ما دوی ته هره ورځ د سهار له اتو بجو څخه د ماپښین تر دوو بجو (Math, history, Social Study, English) تدریسول. دې کار د انګرېزي ژبي په تقویه کې راسره ډېره مرسته وکړه. تر دې اندازې چې په عالي دارالمعلمین کې د تعلیم و تربیې نارویژي استاد د تدریس په وخت کې زه د ژباړونکي په توګه ټولګیو ته ورسره بېولم.

مسټر ډیویني د الاسکا اوسېدونکی او ځوانمرده امریکایي وو. د ښکار شوق ئې درلود او په لاس کې خورا خلاص وو. زما سره ئې د یوه مستخدم په توګه نه، بلکي د یوه اشنا په توګه چلند کاوه. زه چي له افغانستانه رامهاجر سوم، دی مړ سوی وو.

په افغانستان کې د هغه وخت تحصیلي اصول داسي ول چې له عالي دارالمعلمین څخه اول نومره فارغانو کولای سوای چې د کابل پوهنتون په اړوند پوهنځي په دریم ټولګي کې شامل سي. زه هم د کابل پوهنتون د ساینس پوهنځي د فزیک و ریاضي څانګي په دریم ټولګي کې په اتومات شکل شامل سوم. خو د تقدیر مقدرات بیا بل راز لیکل سوي ول. دغه وخت مي بیا پلار ته په کندهار کې د زړه سخته ناروغي پېښه سوه او زه چې د پلار مشر زوی وم، د کور سرپرستي په غاړه کي راولوېدله او مجبوراً بیا د تحصیل پر ښووولو ته اړ سوم. کندهار ته راغلم چې د کور چاري سره سامبالي کړم.

په کندهار کې مې په ۱۳۵۳ ش = ۱۹۷۴ع کال واده وکړ. مېرمن مې معصومه نومېږي او د ارواښاد محمدحليم سليمي د کشر ورور مرحوم حاجي محمداسحق خان دوهمه لور ده. د واده ثمره مې دوې لوڼې (کوچۍ، تنکۍ) او دوه زامن (ذکي او اتل) دي.

تر واده وروسته د ۱۳۵۴ش کال د سنبلې پر ۱۶مه د ښوونکي په توګه مقرر سوم. اطرافي ښوونځيو ته ئې معرفي کړم تر يو لږ عريضو وروسته مې د کندهار په مشرقي لېسه کې د ښوونکي په توګه د تقرر مکتوب تر لاسه کړ او د معلمۍ مقدسه وظيفه مې شروع کړه.

زما د تقرر په وخت کې د ليسې مدير ارواښاد محمدانورخان ايازي وو.

د افغانستان په معارفو کې د ښوونځيو او لېسو ادارې چي به هر مضمون ښوونکي ته، په تېره بيا نوي مقرر سوي ښوونکي ته، ورکاوه، هغه ئې په تدريس کولو مکلف وو. د دغه تعامل له مخي ما په مشرقي لېسه کي لسمو، يوولسمو او دوولسمو ټولګيو ته فزيک، رياضي، پښتو، انګليسي مضمونونه په بېلا بېلو وختو کي تدريس کړي دي. د هغه وخت شاګردان او اداره مي له تدريس څخه فوق العاده راضي ول.

په مشرقي لېسه کي زما د تقرر په دريم کال د ثور اوله فاجعه پر هيواد نازله سوه. ما ته په هماغو لومړيو ورځو کي دا حقيقت لرو ډېر معلومېدی چي افغانستان ته خورا درانه مصيبتونه ګوري. په پای کي مي له خپل پلرني کور، لکه وړاندي چي مي هم اشاره کړې ده، له منزلباغ جادې څخه مي د ملاګلداد کوڅې ته کډه يووړه. هورې هم د ژوند مزه نه وه او په پای کي مي کابل ته د لېږدېدلو فيصله وکړه. له خپلو پلرنيو سيمو څخه د لېږدېدلو په لړ کي به د اطرافو خلک ښار ته راکډه کېدل، د ښار دا به نورو ولاياتو يا مرکز ته لېږدېدل. دغه وخت که څه هم زموږ د کورنۍ ځينو کسانو له هيواده د وتلو (مهاجرت) عزم کړی وو، خو ما ته د هيواد پرېښوول ډېر سخت تمامېدل او په دې باره کي مي فکر لا هم نه سوای کولای. کابل ته مي د کډه کېدلو فيصله د ۱۳۵۹ش = ۱۹۸۰ع کال په دوبې کي وکړه.

د کندهار کور مي خرڅ کړ او د کابل په خيرخانه مېنه (لومړۍ حصه) کي مي کور رانيو. د همدې کال د سرطان له څلرمي نېټې څخه مي د کابل په انصاري لېسه کي د دوولسمو او يوولسمو ټولګيو د انګرېزي ژبې د ښوونکي په توګه کار پيل کړ. د کابل محيط د ولايتونو په پرتله مصئون وو او له دې بابته مي انديښنه يو څه ليري سوه. دوستان او اشنايان مي ځيني تر ما دمخه او ځيني وروسته په کابل کي ميشته سول. په انصاري لېسه کي د تدريس پر څنګ مي د بيهقي په کتاب چاپولو موسسه کي د تاليف و ترجمې د څانګې د اجير غړي په توګه کار پيل کړ. دغه وخت د بيهقي موسسې رئيس زما استاد ارواښاد کانديد اکاډميسن محمد انور نوميالی وو. په دغه موسسه کي مي څلور مياشتي کار وکړ او په دغه موده کي مي د افغانستان انتالوجي (يو زر مخه) وليکله.

د ۱۳۶۰ش = ۱۹۸۱ع کال د لړم مياشتي له يوولسمي څخه مي د باختر آژانس رياست په پښتو مديريت کي له رسمي وخت وروسته د اجير ترجمان په توګه کار پيل کړ. د همدې کال د سلواغې له اوومې نېټې څخه د اطلاعاتو او کلتور وزارت په باختر آژانس (پښتوڅانګه) کي د رسمي مامور په توګه په شپږم بست کي مقرر سوم او د ښوونې او روزنې له وزارت سره مي رابطه قطع سوه. د ۱۳۶۱ش د حمل له مياشتي څخه په څلرم بست کي مقرر سوم او دې وظيفې د ۱۳۶۲ش کال د

حوت تر لومړی، نېټې پورې دوام وکړ. د وزارت مقاماتو د عسکري احتیاط دورې نه تېرېدل راته پلمه کړل او په داسې حال چې زما په شان عین شرایطو لرونکي گوندي کارکوونکو ته ئې تاجیل خطونه او معافي کارتونه ورواخیستل. ما د وخت مقاماتو ته خپل عرضونه وکړل او د پښتو څانگې مشر ښاغلي متین خوږیانې هم په څانگه کې زما موجودیت ته اړتیا تائید کړه، خو څرنگه چې هغه هم د حاکم گوند غړی نه وو، خبرې ئې ځای و نه نیو. عسکری ته تگ زما له هغو پرنسیبونو سره نه سمېدی چې د ژوند له پاره مې ځانته ټاکلي ول او پالل مې. مجبور سوم چې پر پاخه سن باندې د پوهنتون په کانکور ازموینه کې نوم ولیکم. دا ازموینه مې په بریالی، توگه تېره کړه او د ټول افغانستان په سطحه کې عمومي اول نمره سوم. خو له راډیو څخه د کانکور ازموینې د دغه کال عمومي اول نمره یو بل گوندي محصل، چې تر ما ئې نمرې لږ وې، اعلان سو. ما د پوهنتون مقاماتو ته د دغې بې عدالتی یادونه وکړه، خو چا مې خبره وانهورېدله[1]. په پوهنتون کې د خپل خواخوږي استاد علامه رشاد په لارښوونه د ادبیاتو او بشري علومو په پوهنځي کې د پښتو ادبیاتو په څانگه کې شامل سوم. دغه وخت علامه رشاد مرحوم د پښتو څانگې مشري او پر څنگ ئې په پوهنځي کې د تدریس وظیفه پر غاړه درلوده چې زما د شاملېدو په دوهمه میاشت ئې په پوهنتون کې د تدریس چارې پرېښوولې او یوازې ئې په علوموا کاډیمی، کې همکاری، ته دوام ورکړ.

نور بیا ...

---

[1] دا جریان ښاغلي اخترمحمد خان زما د کتاب "پښتني قبیلې او روایتي ریښې" د دوهم چاپ (۱۳۹۰ش) له پاره پخپله لیکنه کې کښلی دئ.

لیکوال: جبران خلیل جبران
ژباړونکی: احمدالله څرگند

## په خوب کې ولاړېدل

زه چې په کوم ښارگوټي کې زېږېدلی وم، هلته یوې ښځې او د هغې لور ژوند کوی؛ دوی دواړې په خوب کې ولاړېدلې.

یوه شپه، چې پر ټولې نړی، چوپتیا غوړېدلې وه، ښځه او لور یې په خوب کې ولاړې سوې او خپل هغه باغ ته ولاړلې چې گرد او خوپ په غېږ کې اخیستی وو.

مور یې په خبرو پیل وکړ او وئې ویل: "هغه، هغه، زما دښمنه ته یې! تا زما ځواني برباد کړه - زما د ژوند پر ویرانه دې خپله زندگي اباده کړه! کاشکي مي ته وژلای سوای!"

وروسته یې لور خبرې پیل کړې او وئې ویل: "اې زړې! اې منفورې او مغرورې ښځې! پر ما دې د ازادی، لارې تړلې دي، غواړې چې زما ژوند هم ستا د ژوند په څېر بې رنگه کړې! کاشکي ته مړه سوې وای!"

په دغه وخت کې چرگ اذان وکړ، مور او لور دواړې له خوبه راویښې سوې. مور ئې په مینه وویل: "گراني! ته یې؟" لور ئې هم په مینه جواب ورکړ: "هو! مورکې".

* * *

هارون خپل شعشعي / لندن

# وختونه او يادونه

ګران روهيال صاب په يوه وروستي ايميل کې را ته ليکلي وه، چې تر دې وروسته غواړو په کندهار مجله کې د نورو مضمونو تر څنګ د ليکوالو او څېړونکو د ژوند خاطرې هم خپرې کو؛ څکه زموږ ځوان ليکوال د ژوندانه د ښلابښلو پېښو په انځورولو او ليکلو کې و لارښوونې ته اړتيا لري. ما ول (ويل) خبره خو دي ښخي سمه او معقوله ده؛ خو د دې کار دپاره بايد د داسي ليکوالو او څېړونکو په يادونو او خاطرو پيل وسي، چې په ليکنو کې (کي يې) پر ادبي خوږوالي او پخوالي سربېره، ژور او عبرتناک درسونه هم نغښتي يي (وي).

ستاسي څخه يې څه پټوم، زه په خپله د داسي ليکوالو او استادانو د خوږو او عبرتناکو يادونو و لوستلو ته لړموکی ناست يم. همدا نن مي د کندهار مجلې په څلرمه ګڼه کي د ارواښاد هاتف صاب د ژوند او شخصيت په اړه د درانه استاد- ډاکټر پالوال صاب خوږې خاطرې و لوستلې، چې پر خوند او عبرت سربېره يې څو دېرش کاله وروسته يو پلا بيا و خپل پلرني کور، کوڅې او ښار ته بوتلم؛ او هغه خوږې خاطرې يې را يادي کړې، چې په اروېدو يې زما غوندي دردمنو پردېسانو په زړونو کي د ښېلتانه اورونه بلېږي.

ما خو خپل عذر و وايه، خو روهيال صاب سره له هغه هم ټينګار وکئ، چي زه هم بايد د خاطراتو په دې لړۍ کي ارومرو برخه واخلم. د دوی غوښتني ته د درناوي په خاطر، دا دئ د ژوندانه د خوږو او ترخو له هغه خورجينه څو خاطرې در لېږم، چې څو کاله مخکي مي په قلم کښلي، خو تر اوسه يې لا د ټايپلو او خپرولو وخت نه دئ را رسېدلئ.

هارون خپل

د کانکور اول نومړګي:

# د خوښۍ او خواشینۍ نه هېرېدونکې خاطره

د سرو لښکرو د یرغل لومړي کلونه وه. د هیواد په ګوټ ګوټ کې د جګړو او ناارامییو اورونه بل وه. د کابل ښار په بېلو بېلو برخو کې د جلب و احضار لویي او کوچنۍ ډلي ګرزېدې؛ او بې ښه و بده یې، پر عسکري خدمت برابر ځوانان، له کوڅو او بازارو څخه خپلو قطعاتو ته ځغلول.

په دغسې شرایطو او حالاتو کې مې تر څه موده دولتي ماموریت وروسته، د کانکور امتحان ور کړئ ؤ؛ او په بې صبرۍ سره یې د نتیجو و اعلان ته منتظر وم. که څه هم د حکومت د قوانینو او مقرراتو له مخې تر دې دمه له عسکري خدمت څخه معاف وم؛ خو د جلب و احضار خپلسرو ډلو و کانکور مانکور یا داسې نورو دلایلو ته چندان غوږ نه نیاوه. څه سر به مو ګرزووم، یوه شپه تر څو میاشتني انتظار وروسته، د تلویزون د ماښامنییو خبرونو په پای کې، د کانکور ازمویني د نتایجو اعلان خپور سو، چې په اروېدو یې ډېر زیات خوشاله سوم.

زموږ کور و کابل پوهنتون ته نیژدې ؤ. د علي آباد د غره لمریني خوا ته کابل پوهنتون او سرپېچني خوا تې زموږ کور ؤ. زموږ له کورو څخه و پوهنتون ته د غره په لمن کې خورا لنډه او نیهامه لار تېره سوې وه، چې وروسته مې د پوهنتون په ټوله دوره کې همېشه پر همدې لار تګ راتګ کاوه. سهار په خړه پر دغه لار د کابل پوهنتون پر لور ور رهي سوم. له دوو – درو ورځو راهیسي په ښار کې څېرې څېرې واوره اورېده؛ او هوا ډېره سړه وه. د پوهنتون ناجوګان او نوري درختي په سپینو واورو پوښلي وې. په لار کې مې د استاد ضیاء قاریزاده دا غزله له ځانه سره زمزمه کوله، چې د هیواد د تکړه سندرغاړي، استاد ساربان، په ښکلي اواز کې ویل سوې وه؛ او همېشه به د کابل د واورو په شپو او ورځو کې د رادیو تلویزون له څپو څخه خپرېدله:

مشک تازه می بارد ابر بهمن کابل
موج سبزه می کارد کوی و برزن کابل
ابرِ چشمِ تر دارد، سبزه بال و پر دارد
نکهتِ دگر دارد، سرو و سوسن کابل . . .

د سړې هوا او پرله پسې واورې په وجه مې تصور کاوه، چې په اسانۍ سره به خپلې نومړې وګورم؛ او په چټکۍ سره بېرته ځان تر کوره را و رسوم؛ خو کله چې د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځي و انګړ ته و رسېدم، د خلګو له بېروباره د تېرېدو لار نه موندل کېده. سوونو نجونو او هلکانو په بې ساري مینې او تلوسې د ځان یا نورو دوستانو د کانکور نومرې پلټلې. ناچاره څه ګړی د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځي د عمومي دروازې و مخ ته و درېدلم؛ خو د بېروبار کمېدو هیڅ څرک نه ښکارېدئ. د انتظار شېبې په ډېرې سختۍ تېرېدې؛ ځکه نو زه هم نورو ځوانانو او نجونو غوندي، د خلګو په ټېلو او ټمبو ور ګډ سوم.

د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځي د عمومي دروازې له حدودو څخه د پوهنتون د اديتوريم او حقوقو پوهنځي تر بېلوونكي دالېز پورې، د صنفو ټولي كړكۍ د كانكور ازمويني د نتيجو په ليستو ډكي وې. تر څو دقيقو ټېلو او ټمبو وروسته مي ايله بېله ځان د حقوقو او سياسي علومو پوهنځي د كاميابانو و ساحې ته و رساوه. په دې چي د حقوقو او سياسي علومو پوهنځی مي لومړی او وروستی انتخاب ؤ، بايد تر هر بل پوهنځي مخكي مې د دې پوهنځي په ليستو كي پلټنه شرو كړې واى. تر اوسه لا د نجونو او هلكانو د ګڼه ګوڼي په وجه له ليستو څخه دوه – دوه نيم متره ليري ولاړ وم. هر چا د ځان، همصنفيانو او دوستانو نومونه لټول؛ او په نسبتاً لوړ اواز يې د هغو د نومرو په باره كي تبصرې كولې. د دغو تبصرو په ترڅ كي، يوې نجلۍ و خپلي ملګري ته وويل:

– فهيمه! ببيی (ببين ) امسال اول نمرهٔ كانكور فارغ ليسهٔ ...است.

– كو؛ نامش چيست؟

– د همو سرِ سرِ ليست ببيی؛ نامش هارون است.

د هغوی د دې خبرو او تبصرو په اورېدو سره مي په زړه كي يوه مرموزه غوندي خوښي پيدا سوه. كه څه هم تر اوسه لا باوري نه وم، چي هغوی د كم (كوم) هارون په باب خبري كيې. د نجونو تر تېرېدو وروسته د درو– څلورو هلكانو يوه بله ډله په چټكۍ د ليستو و مخ ته و درېدله؛ او په ګډه يې د خپلو همصنفيانو او دوستانو په نومرو لټولو شروو كړه. ما ته بې له صبر كولو بله هيڅ لار نه وه. تر شا يې ولاړ وم؛ خو تبصرو ته مې په ډېر ځير او شوق غوږ نيولئ ؤ. يوه خپل ځنګ والا انډيوال ته وويل:

– عارف بچيم! نمرهٔ اول كانكور امساله همی بچه ګرفته.

– منظورت هارون است؟ عارف پوښتنه ځني وكړه:

–آ (هان).

– چطو (چه طور) فاميدی (فهميدی) كه نمرهٔ اول امساله او ګرفته؟

– مه پيشتر اول نمره های تمام فاكولته ها ره (را) ديدم. نمرهٔ همی (همين) بچه از ګلګی بلندست.

– راس (راست) ميګی؟

– بلی.

–كمش؛ كاش كدام روزی می ديديمش.

څو دقيقي وروسته ما او څو نورو منتظرو كسانو ته د ليستو ليدلو رَوَښ را و رسېدئ. مخكي خو مي د هارون نوم او د خپلي ليسې نوم اروېدلئ ؤ. سمدلاسه مي په اول ليست كي و اول نفر ته، ستركي شخې و نيولې. كه څه هم نوم، د پلار نوم، د ليسې نوم، د فراغت كال او د كارټ نومره ټول زما وه؛ خو سره له هغه مي هم باور نه را تئ، چي ما بېچاره به دونه لو (لويه) توره كړې يي. د همدې ناباورۍ له اسيته مي هر څه څو پلا په ډېر غَور او دقت تر نظر تېر كړل؛ د غلطۍ او تېروتني هيڅ اثر نه ښكارېدئ. د همغه كال د كانكور تر ټولو

لوړه نومره ریشتیا هم دې حقیر گټلې وه. دونه خوشاله سوم، چې په کالو کې نه ځاېیدم. نیژدې ؤ، شاوخوا ولاړو هلکانو او نجونو ته په زوره نارې و وهم، چې او خلگو! هارون زه یم؛ د کانکور اوله نومره ما وړې ده.

د خلگو له بېروباره مې، په انډیوالانو یا شناخته خپلو کې هیڅوک سهي نه کړل؛ باید دا ناپایه خوښي مې ژرترژره له خپلي کورنۍ، په تېره بیا محترم پلار سره شریکه کړې وای، چې زما د ښه تعلیم و تحصیل ډېر غم ورسره ؤ؛ او په داسي پرتمینه سوبه تر ما ډېر خوښېدئ. د کور په نیامت د پوهنځي د دروازې و خوا ته روان سوم. نابېره مې د پوهنځي پر دروازه هغي ځړول سوي خبرتیا پام واړاوه، چې په غټو تورو یې لیکلي وه:

شاملان تازه وارد پوهنځی حقوق و علوم سیاسی، هر چه زودتر در مدیریت تدریسی ثبت نام نمایند.

د دې اعلان په لوستلو سره مې، مخامخ و تدریسي مدیریت ته لار جوړه کړه، چې د پوهنځي د ودانۍ په دوهم پوړ کې د رییس د دپتر (دفتر) پر مخامخ ؤ. تر څه انتظار وروسته مې د نوم لیکلو وار را و رسېدئ. تدریسي مدیر تر مبارکۍ ویلو او نوم لیکلو وروسته، په ډېراحترام او عزت د پوهنځي د محصلانو هغه مستطیل ډوله سپین کارټ راکئ، چې د پوهنځي په بیضوي شکله مهر ښکلی سوئ ؤ. وروسته یې را ته و ویل، چې کارټ مې باید د پوهنتون د محصلانو په مدیر هم ټاپه کم.

له تدریسي مدیریت څخه تر را وتلو وروسته، سمدستي د پوهنتون د ریاست په ودانۍ کې د محصلانو و مدیریت ته ورغلم. د محصلانو مدیر مې پر کارټ هغه بې رنگه ماشیني ټاپه و وهله، چې په لیدو سره یې نور هیچا د کارټ پر اصالت او کره والي شک نه سوای کولای. دا مهال په کابل ښار کې د جلب و احضار عملیاتي ډلو، نه یوازې ما غوندي کسانو، بلکي تنکییو ځوانانو او پخو ښاریانو په زړونو هم اوخې ننیستلې وه.

د پوهنتون د پاخه کارټ په تر لاسه کولو سره مې د اول نومرگۍ خوښي نوره هم پسي زیاته سوه. په ځغاسته ځغاسته کور ته ولاړم؛ او تر هر چا مخکي مې پر گرانو والدینو، په تېره بیا محترم پلار د اول نومرگۍ زیری وکئ. د تعلیمي ژوند په کلونو کي خو مي د اول نومرگۍ شهادتنامې ډېري کور ته وړي وې؛ مگر هیڅ اول نومرگۍ د دې ستري او شانداري اول نومرگۍ په اندازه نه وم خوشاله کړئ.

دا وه د دې نه هېرېدونکي خاطرې خوږه او په زړه پوري برخه. اوس یې د ترخې او دردونکي برخي نکل در ته کوم:

د نتیجو تر خپرېدو څو ورځي وروسته، د نوي تحصیلي کال د شرو او د پوهنځییو د اول نومره گانو د تشویق او تقدیر په خاطر د پوهنتون په ادیتوریم کي پرتمین مراسم جوړ سوي وه، چې د وخت صدراعظم، د د لوړو زده کړو وزیر، د پوهنتون رییس، د پوهنځییو رییسانو، ځینو استادانو او محصلانو گډون پکښې

کړئ ؤ.

ما ته نه یوازي په دغو مراسمو کي د ګډون هیڅ راز بلنه نه وه را کړل سوې، بلکي د جوړېدو په باب یې هم له هیچا څخه نه وم غوږېدلئ. له معمول سره سم و پوهنځی ته رهي وم. په لار کي یو استاد په مخه راغئ؛ او په تعجب سره یې را ته و ویل:

– هارون! ای جه (این جا) چه می کنی؟ چرا به ادیتوریم نه رفتی؟

– چرا استاد د (در) ادیتوریم چه گپست؟

– عجب! تو تا حال خبر نه داری؟!

– نی ولا (الله) کسی بریم (برایم) چیزی نه گفته.

– زودتر به ادیتوریم برو، که به اول نمره های پوهنځی ها جوایز دا ده میشه (می شود). تو که اول نمرهٔ کانکور هستی باید د (در) قطار اول می ششتی (می نشستی). هله زود برو و جایزه ای ته (اترا) بیگی (بگیر).

له استاد سره تر خدای پاماني وروسته، سمدلاسه د پوهنتون د ادیتوریم و خوا ته ور رهي سوم. د ادیتوریم و مخ ته د هغو خرمستانو (خادیستانو) او انقلابي سپیانو (انقلابي سپاهیانو) له برو برو او پشو پشو څخه رو نه کېدئ، چي له لاسي مخابرو او ډول ډول کوچنیو وسلو سره دې خوا، آخوا ګرزېدل. د ادیتوریم تر دروازې لږ آ خوا ولاړو تورو مخصوصو بینزانو له ورایه دا شاهدي ورکول، چي په مراسمو کي ارومرو د دولت یا واکمن ګوند ډېرو لویو مشرانو ګډون کړئ دئ. په داسي حال کي چي له خوښیيه په ځان نه پوهېدم، د ادیتوریم د دروازې په خوله کي ولاړو امنیتي مسوولینو ته ور نیژدې سوم:

– بیادر (برادر) مه (من) اول نمرهٔ پوهنځی حقوق و علوم سیاسی استم. نمرهٔ اول کانکورِ امساله (امسال را) مه (من) به دست آوردیم. همی دقه (همین دقیقه) خبر شدم، که د (در) ادیتوریم مراسم تقدیر از محصلان ممتاز دایر شده. لطفاً اجازه بتین (بدهید) که مه هم در مراسم شرکت کنم؛ و جایزهٔ خوده (خود را) بگیرم.

– برو برو بیادر ای جه مراسم کانکور مانکور نیس (نیست). به کتابخانهٔ پاهنتون (پوهنتون) برو شاید ای مراسم د اوجه (آن جا) باشه (باشد).

د دې خبري په اورېدو سره مي دوې پښې خپلي او دوې نوري پور کړې. د لسو– دولسو دقیقو لار مي په څلورو – پینځو دقیقو کي و وهله. خدای خبر چي له ډېره هوله به څه خولې را څخه بهېدلې؛ او مخ به مي پر څه لایزار سور اوښتئ ؤ؟ خیر، د پوهنتون د کتابخانې و مخ ته، له لیري هیڅ کیسه نه ښکارېده. د ډاډ او خاطرجمعۍ دپاره مي، د کتابخانې په خوله کي له یو موظف کتابدار څخه د مراسمو په اړه پوښتنه وکړه. په طنزیه لهجه یې را ته و ویل:

– بیادر خودت خوب می فامی (فهمی) که ای (این) کتابخانه پاهنتونست (پوهنتون است). محصلین و

استادا (استاد ها) به خاطر مطالعه یا کتاب گرفتن به ای جه می آین (می آیند). کلِ جلسات و کنفرانسها د ادیتوریم پاهنتون دایر میشه (می شود).

– شما کاملاً درست می فرمایین (می فرمایید). مه هم دقیقاً همی طو (همین طور) تصور می کنم؛ ولی موظفین امنیتی ادیتوریم ای جه روانم کردن (کردند).

– غلط گفتن (گفته اند)؛ دوباره امو جه (همان جا) برین (بروید).

– تشکر.

له کتابخانې څخه مي بیرته په یوه سا تر ادیتوریمه ځان ورساوه. تلولی تلولی د ادیتوریم په خوله کې همغو ولاړو امنیتي مسوولینو ته ور وړاندې سوم:

– بیادر محترم! شما پیشتر گفتین (گفتید) که مراسم تجلیل از محصلان ممتاز در کتابخانهٔ پوهنتون دایر شده. مه همی حالی (همین حالا) از او جه (از آن جا) آمدم؛ اما او جه هیچ جلسه و مراسمی نبود.

– او بچه پیشتر هم بریت (برایت) گفتیم، که د ای جه مراسم کانکور مانکور نیس (نیست). رفیق کشتمند آمده و جلسهٔ فعالین حزبی جریان داره (دارد). برو دیگه دفه (دفعهٔ دیگر) ای طرفا (این طرف ها) دور نه خوری، که می زنمت.

د دې گواښو او سپکو سپورو تر اورېدو وروسته، په ډېر خپگان او نامېندی، بیرته د پوهنتون و کتابخانې ته ولاړم؛ او هورې په یوه گوښه کې ارام کښېنستلم. له همصنفیانو او اشنایانو څخه څوک نه ښکارېدل. وروسته مالومه سوه، چې ځیني په مراسمو کې د برخې اخیستنې دپاره و ادیتوریم او ځیني نور یې د گپ شپ یا چایو و ډوډۍ په خاطر و لیلیې یا کفټریا ته تللي وه. هر څونه چې مي کوښښ وکړ د خرمستانو او انقلابي سپیانو ناوړه چلن و مطالعې او فکري تمرکز ته نه پرېښوولم.

زه لا په همدې سوچو او چورتو کې ډوب وم، چې نابېره د ښووني او روزني پوهنځی یو شناخته هلک را پېښ سو. د هغوی د ځینو مضمونو درسي خوني هم زموږ د پوهنځي په دالېز (دهلېز) کې وې. کله چې په کتابخانه کې و لیدلم، په چټکو چټکو گامو یې ځان تر ما پورې را ورساوه؛ او په خپله خوږه هراتۍ لهجه یې را ته وویل:

– لالا کجا بودی؟ چِرِی(چرا) د ادیتوریم جایزهٔ خور (خود را) نگرفتی؟ عجب آدمم استی؛ امروز هم اینجگه (این جا) نشستی و درس می خوانی؟ چون خودت اول نمرهٔ عمومی بودی. از همه اولتر نام خودته (خودت را) خواند. همه استادا و محلصین چکچک می زدند؛ و منتظر دیدنت بالای ستېژ بودن (بودند)؛ مگر تو هیچ مالوم (معلوم) نشدی.

و دې هراتي ملگري ته مي، چې محمدغني یا عبدالغني نومېدئ، ټوله کیسه سر تر پایه وویله. د کیسې تر اورېدو وروسته یې په لوړ اواز خورا زیاتي سپکي

سپوري ورته و ویلې. کله چې پوهنځي ته راغلم. همصنفیانو هم غني جان غوندي د کرکې او غوسې احساسات څرګندول. د کانکور ازموینې د اول نومرګۍ دا تریخ او دردونکی اړخ مې، تر څو دېرش کاله څنډ وروسته هم، یوه شېبه له یاده نه وزي.

د ډېرې خواشینۍ او بدمرغۍ ځای دئ، چې د دونیا په ټولو ملکو کې و ممتازو شاګردانو ته د سرو زرو مډالونه او شکالرشیپونه ورکول کېږي؛ خو زموږ په بدمرغه هیواد کې حتا د نمانځني و مراسمو ته هم نه پرېږدي.

دا سپک او بې قدره چال چلن وروسته په نورو ناوړو او دردونکو بڼو هم تکرار سو. د اول سمیسټر تر کلنیو امتحانو وروسته، د واسطه دارو ناکامانو او مشروطانو ټولۍ و شوروي او نورو «سوسیالیستي» هیوادو ته بورسونه واخیستل؛ خو ما بې واسطې اول نومره ته حتا چا د دراوغو ست هم و نه کئ. ښایي د پوهنتون او لوړو زده کړو انقلابي چارواکو ته به مالومه وه، چې دا لېونی د شوروي موروي د نجونو او شرابو په کیسه کې نه دئ.

د پوهنځي تر ختمولو وروسته مختورو او نالایقو واسطه دارانو بیا هم په دې یا هغه دولتي- ګوندي اداره کې د خپلي خوښي مقامونه او منصبونه تر لاسه کړل، خو دا بېچاره پر څلور کاله عمومي اول نومرګۍ سربېره و مسلک پرېښوولو ته اړ سو.

## د نومرو ریکاټ (ریکارډ)

د پوهنتون د تحصیل دوره هم څه خوندوره او په زړه پوري دوره وه. شوخو او مسخراچي همصنفیانو (هلکانو او نجونو) مو پر ځینو استادانو د هندي او اوروپایي فیلمي هونرمندانو نومونه ایښي وه. پر چا د امجد خان، پر چا د پرېم چوپړا، پر چا د دې او پر چا د هغه فیلمي اداکار نوم ایښوول سوئ ؤ.

د پوهنځي په دریم صنف کې مو د «حقوق مالي» په نامه یو مضمون وایه، چې د صنف مسخراچي هلکانو یې پر استاد د پرېم چوپړا نوم ایښئ ؤ. د صنف شوخو او شرارتي نجونو بیا په خپلو منځو کې د «زنِ غر» په نامه یاداوه. د هلکانو په حساب یې ریشتیا هم په ظاهري کړووړو کې له پرېم چوپړا څخه ډېر توپیر او جلاوالی نه لیدل کېدئ. همغسې جګه لوړه ونه، کشړوپه خوله، پیتکۍ پزه، نري برېتونه او داسې نور؛ خو د نجونو په حساب یې بیا خبرو او ناز و نخرو له «زنِ غر» څخه چندان توپیر نه لاره.

د حقوقو فاکولتې له دود او دستور سره سم په هر سمیسټر کې دوه امتحانونه اخیستل کېدل. یوه تې (ته یې) مېډ سمیسټر یا صنفي امتحانونه ویل، چې شل نومرې یې لرلې. بل تې فاینل یا کلني امتحانونه ویل، چې اتیا نومرې یې لرلې. صنفي امتحانونه همېشه په تحریري، خو کلني امتحانونه زیاتره په تقریري ډول اخیستل کېدل. زما په ګومان یې له دې

خاطره په تقريري بڼه اخيستل، چي محصلان د عدلي، قضايي او ډيپلماټيکو ادارو له استدلالي لارو چارو سره اشنا کي.

دا وخت زما د زلميتوب، فکري کمزورۍ او ناپوهۍ دوره وه؛ څکه نو تر زده کړي او کمال په اول نومرګۍ، علمي نوم او نښان او داسي نورو خبرو پسي ډېر ګرزېدم. د يوې نومرې د کمېدو په سَوَب به نه د خوړو په خوند پوهېدم؛ او نه به مي له چورت او اندېښې څخه ارام خوب کولای سوای. اوس چي هغه ورځي را يادي کم، پر ځان خاندم. خپلو کشرانو ته هم تر نومرو، نامه او مقام د پوهي او زده کړي توصيه کوم؛ خو مالومېږي چي هغوی هم زما د ځوانۍ په ناروغۍ اخته دي. ملامت هم نه دي؛ څکه دونيا ټوله په نامه او شهرت پسي لېونۍ ده.

څه سر به مو ګرزوم د «مالي حقوقو» په مېډ سميسټر ازموينه کي مي له توقع سره سم پوره نومرې واخيستې؛ خو د صنف ټول هلکان او نجوني، د هغي نجلۍ او پوره شلو نومرو ته هک اريان وه، چي په نورو مضمونو کې چندان خوند نه ؤ. دا نجلۍ د قد و اندام په لحاظ په ټول صنف کي بې جوړې وه. د تورو او اوږدو زلفو منظم چوټي خو يې نه يوازي په حقوقو پوهنځي، بلکي په ټول پوهنتون کي ساری نه لاره. زموږ شوخ او ټوکي همصنفي، اسد جان، به همېشه د سومباټوري (کوناټوري) او غولانځوري مزارۍ په نامه يادوله.

مياشتي په چټکۍ تېري سوې. د کلنيو ازموينو په لړ کي د پرېم چوپړا صاب د ازمويني ورځ را و رسېده. د پوهنځي په کتابخانه کې، چي د دالېز و کيڼي خوا ته لومړۍ کوټه وه، د امتحان اخيستلو دربار کړئ ؤ. د چايو پياله او د شاپېړۍ (شيرپېرۍ) غاب يې و مخ ته پروت ؤ. په لوړه روحيه يې د مېز مخ ته کښېنستم؛ او له هغه سګريټ دانۍ ډوله ښيښه يې لوښي څخه مي د پوښتنو درې پېچلي کوچني کاغذونه را واخيستل، چي د مېز پر يوه کونج پروت ؤ. پر سپين کاغذ مي د ځينو غټو ټکو تر يادښتولو وروسته بې له ځنډه په جواب ويلو شرو وکړه. پرېم چوپړا صاب د خپلو سوالو جوابونه په پوره غَوَر او دقت وارو‌ېدل؛ خو په هغو يې قناعت حاصل نه سو. وروسته يې له ډيپلماټ بکس څخه خپل ليکچرنوټ را وايستئ؛ په ډېري تېزۍ يې دې خوا، آ خوا ورقي واړولې را واړولې؛ وروسته يې له دې څپرکي او هغه څپرکي څخه څو نوري پوښتني موښتني هم وکړې. د خدای په فضل يې و هري پوښتني ته د ده تر توقع خوندور او جانانه جوابونه ور کړل سول. کله چې په دې ډول هم د نومرو کمولو څه توجيه و نه موندله، نو يې په وارخطايي سره د کورتۍ و بغل جېب ته لاس ننيستئ؛ او د خپل يادښت کوچنۍ کتابچه يې را و ايستله:

– هارون! شما با وجود تأکيد مه به يک مارش و دو کار داوطلبانه نه آمدين (آمده ايد).

– استاد محترم! ايجه امتحان حقوق ماليست نه سوال و جوال مارش ها و کار

های داوطلبانه.

– بلی امتحان حقوق مالیست؛ اما مه به همه محلصین گفته بودم، که شرکت در مارش ها و کار های داوطلبانه پیش مه نمره داره (دارد)؛ به ای خاطر خودت ازین نمره ها محروم میشی (می شوید).

– جناب استاد! شرکت در کار داوطلبانه جای خوشی و افتخارست، اما مه بنا بر مشکلات فامیلی در همچو کار های دسته جمعی سهمگیری نمی تانم (توانم). همه همصنفیان و شماری از استادان پوهنځی می دانن (دانند) که مه روزانه بعد از ختم دروس فاکولته، به آژانس باختر می روم؛ و تا ناوقت های شب داو جه کار می کنم.

– مه به کار های شخصی و مطبوعاتی تو هیچ غرض ندارم. ای طو کار ها به هیچ صورت مسوولیت کار داوطلبانه را از بین نمی بره؛ به ای خاطر از نمرات مارش ها و کار دواطلبانه ات کاسته می شه (می شود).

– استاد! تا حال در هیچ مضمونی نود و نو (۹۹) نه گرفته ام. لطفاً ریکارد نمراتم را خراب نه کنید.

– مه می دانم که چه کنم. بفرمایین دیگه (بفرمایید دیگر) رخصت استین (استیتد).

په زړه کي مي ويل خدای دي واخله له آ داوطلبانه کار سره، چي تر جبري کار هم بتر دئ. حقوقو فاکولته وګوره؛ او د داوطلبانه کار په نامه دا شين زور او بدماشي وګوره!

څو ورځي وروسه د امتحانو نتيجې اعلان سوې؛ که څه هم د هلکانو په اصطلاح پرېم چوپړا او د نجونو په اصطلاح «زنِ غر» خپله عقده ايستلې وه؛ د سل آفرين پر ځای يې نه نيوي (۹۹) نومرې را کړي وې، زه د هر بل سميسټر په شان بيا هم په ډېرو لوړو نومرو د اول نومرګی په وياړلي مقام سرلوړی سوئ وم.

زموږ دنګه ونګه، چاغه شلنډه يا د اسد جان په اصطلاح سومباټوره او غولانځوره همصنفۍ په ټول صنف کي يوازنۍ محصله وه، چي د نورو مضامينو د ډېرو کمزورو نومرو پر خلاف يې د پرېم چوپړه صاب په «حقوق مالي» کي د پوره سلو نومرو په اخيستلو سره ټول صنف ګوته په غاښ کړئ ؤ. سره له دې چي سلو نومرو يې له ورايه د ځينو مشکوکو او مرموزو اړيکو شاهدي ورکوله، خو بې له څو ګوتو په شمېر نجونو يې چا د دې راز د پوهېدو هڅه و نه کړه؛ ځکه د هيچا زړه ته نه لوېده، چي زموږ د همصنفۍ او استاد تر منځ به بې له درس او تعليمه، څه بله رشته هم وجود لري. زما او نورو همصنفيانو دا تصور او ګومان هغه وخت ناسم وختئ، چي د پرېم صاب او سومباټوري له اوږدې يارانې څخه پرده پورته سوه؛ او هر چا د سر په سترګو ولېدل، چي د «حقوق مالي» سل نومرې بې دليله نه وې.

نور بيا ...

۱۹۹۸/۱/۷م

دریم لیک

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د حاجي عبدالظاهر څرک په نوم)

ظاهرجانه السلام علیکم!

خدای تعالی دي روغ او جوړ لره، د خپلي کورنۍ او خپلوانو سره. روژې، لمونځونه او تراویح دي خدای قبول کړه.

ښه ئې ویلي وه اوز بک، البته هغه وخت چي دوی په زور کي نه وه، چي: اوغان ته چي دي سلام ورواچاوه، نو پر هر سلام به یوه تنګه تاوان هم ورکوې. غالباً به دا تنګه د چایو او نصوارو د تعارف خساره وه، مګر اوس چي زه ستا په وسیله نعیم جان ته خطونه استوم یقیناً به په سوو او زرو تنګې خساره درارووم. خیر دعا به کوم چي خدای تعالی دي عوضونه درکړي.

لکه څه ډول چي مي وعده درسره کړې وه، چي ورو ورو به د مرحوم شیخ صاحب مناقب او اوصاف او له هغه څخه راپاته خاطرې درته لیکم. په تېر لیک کي مي په نامرتب ډول د جنت مکان په باب څه څه عمومي معلومات درته وکښل. هیله ده چي ترتیب او تنظیم ئې ته پر خپله غاړه واخلې. په حاضر وخت کي به یوازي د هغه مرحوم د ادبي شخصیت په باب څه څه ولیکم.

که څه هم د مرحوم حاجي عبدالغفور خان د ځوانۍ په وخت کي د لیکني فن او ادب خصوصاً په پښتو کي وده نه وه کړې، خو دی پخپله د عالي ادبي ذوق تښتن او مستعد لیکوال وو.

که څه هم د امیر شېرعلي خان له زمانې څخه به کله کله یو و نیم پښتو مضمون په اخبار کي نشرېدی (په شمس النهار کي). لیکن د محمدنادرخان د راتلو سره پښتو ته تر پخوا زیات پام ورواووښت. کله چي محمدګل خان مهمند په کندهار کي د تنظیمې رئیس وګومارل سو، له یوه لوري هغه په خپله د پښتو سره ډېره مینه درلودله، له بله اړخه د دولت سیاست هم دغه ډول وو. ځکه ئې نو کندهار ته د پښتو او پښتنو د مرکز په سترګه وکتل او په دغه ښار او دغه ولایت کي ئې د پښتو د ادبي انجمن د بنسټ تیره کښېښوول او په دغه انجمن کي ئې د کندهار پیاوړو او خبیره کسانو ته غړیتوب ورکړ، که څه هم هغه وخت زما سن په مشکل لسو کلونو ته رسېدای سو خو

وروسته وروسته چي خبر بېدم دغه خلگ په هغه انجمن کي سره راغونډ وه:

١. د انجمن بلااستحقاقه رئيس: منشي محمدعثمان خان بارکزی، په فرمان رئيس سوی وو.
٢. مرحوم ملا عطامحمد اخند، مشهور په حاجي اخند (د عطايي يا عطائيانو پلار).
٣. مرحوم حاجي ولي محمد خان مخلص.
٤. مرحوم مولوي قيام الدين خادم، له ننګرهار څخه.
٥. مرحوم محمداعظم خان ايازي.
٦. مرحوم حاجي عبدالغفور خان خروټی
٧. مرحوم عبدالخالق اخندزاده واسعي

پورته ذوات د انجمن اصلي غړي وه، د دغو له اړخه د انجمن افتخاري غړي هم موجود وه، په لاندي توګه:

١. مرحوم استاد عبدالحی حبيبي
٢. مرحوم مولوي صالح محمد (د پوهني مدير)
٣. زما پلار مرحوم مولوي محمدويس خان
٤. زما مورنی نيکه مرحوم ملا رحمت الله

غالباً چي مولوي محمدرفيق خان حبيبي هم په افتخاري غړو کي وو.

د انجمن تخنيکي غړي

١. مرحوم محمدګل خان نوري، کاتب
٢. محمدنور خان کاتب يا د دفتر رسمي شاګرد
٣. مرحوم محمدارسلان سليمي وردګ، تحويلدار

د حوادثو او جرياناتو د ثبت عادت تر اوسه موجود نه دئ، د هغه وخت دفترونه هم د هغه وخت سره يو ځای تللي دي. زما نظر فقط د يوه وهم او ګومان درجه لري. دغه انجمن يوه مياشتنۍ مجله د (پښتو) په نامه نشرول چي اکثره به د پورته ذکر سوو حضراتو شعرونه او مضمونونه پکښي نشرېدل او ندرتاً هم د نورو، پر دغه سربېره ئې دغه لاندي تحقيقي کارونه هم پر مخ بېول:

١. د پښتو لغات راټولول.
٢. د پښتو ژبي ګرامر او قواعد ترتيبول.
٣. د پښتو د پخوانيو شاعرانو معرفي کول او د هغو تذکرې ليکل.
٤. پښتو متلونه راغونډول.
٥. پښتو فولکلوريک نکلونه جمع کول.

په پورته ذکر سوو ټولو برخو کي د مرحوم شيخ صاحب سهم او ملګري موجوده وه. وروسته د هغه انجمن له طرفه راغونډ سوي آثار په دې توګه نشر سوه:

١. ملي هنداره، د پښتو فولکلوريک حکايات، د محمدګل نوري په نامه او د هغه له طرفه.
٢. پښتو متلونه، د محمدګل نوري په نامه.
٣. پښتو ګرامر (د صرف او نحو معادل) د محمداعظم ايازي په نامه او د هغه له خوا.
٤. پښتو لغات – د پښتو قاموس په نامه کتاب ورګډ سوه او د پښتو

ټولنې له خوا خپاره سوه.

۵. همدا ډول د شاعرانو تذکره د (پښتانه شعراء) په نامه تذکره کې ورګډ او د استاد حبیبي او استاد رښتین په تالیف د پښتو ټولنې له خوا نشر سوه.

ادبي انجمن تر څه وخته پوري په کندهار کې کار وکړ. خو د دې له پاره چې روښانفکران د حکومت تر دائمي څارنې لاندې وي، انجمن ئې دربست په کابل کې د ادبي انجمن سره ادغام کړ. له شا او خوا څخه ئې نور غړي پر زيات کړه او څه موده وروسته ئې هغه انجمن پر مختلفو برخو وویشه چې یوه ئې پښتو ټولنه بله ئې د تاریخ انجمن ...

د کندهاریانو د همېشګي عادت مطابق اکثر دغه ذوات کابل ته نه ولاړه او په کندهار کې پاته سوه، خو مرحوم حاج عبدالغفور خان حج ته ولاړ او پر هغه مځ تقریباً د لسو کالو په حدودو کې په مدینه منوره کې پاته سو. کله کله به ئې له مدینې منورې څخه خپلې لیکلې مقالې او نظرونه د نشر له پاره کندهار ته رالېږل چې د هغه وخت په "طلوع افغان" کې به مرحوم استاد حبیبي د حاجي عبدالغفور خروټي په نامه نشرول. دا تخلص مرحوم حاجي عبدالغفور د ځان له پاره نه وو غوره کړی، بلکي استاد حبیبي د تشخیص او تشخص له پاره په خپله د مرحوم د نامه سره زیاتاوه.

شیخ صاحب مرحوم د څه لیکلو ډېر کم اهتمام کاوه او کله چې به ئې یوه ادبي پارچه ولیکله، د هغې د ساتلو عادت ئې هم نه درلود.

انسان کله حاضر سعادت دائمي فرض کړي او د ځان حق ئې وبولي. موږ هم د دغه غفلت ښکار ګرزېدلي وو. د مرحوم شیخ صاحب لیکنې ډېرې عالي او معیاري لیکنې وې. حتی د پښتو "مقامه" ورته ویل کېدای سي. موږ به ولوستل یا به مو واورېدل، خوند به مو پر واخیست په دې فکر چې شیخ صاحب خو ژوندی دئ او موږ به هم پر دغه حال پاته یو. د هغه یادداشت به مو نه اخیست. د حاضر سعادت قدر د هغه تر زوال وروسته معلومېږي او هغه وخت په پښېماني او تاسف بیا نه راګرزي.

دا په زړه کې هم نه راګرزېدل چې یو وخت به مرحوم شیخ صاحب زموږ په منځ کې نه وي. یا به نور د انجمن یاران خاوري سوي یا آواره سوي وي. که چیري دا تصور زړه ته راګرزېدلی وای هغه حال به مو تر غنیمت پورته بللی وای. حیف چې هغه وخت فرصت په غفلت له لاسه ووت. اوس فرصت هم نسته او غفلت ښه اړولې ده اما له منځه نه دئ تللی که وروستی فکر رومبی موجود وای اوس به موږ د مرحوم شیخ صاحب ستایلي او منلي آثار درلودای، که څه هم کم وای. اما کله چې بیا انسان د طوفانونو ژورتیا ته ګوري، هغه چې په عمرو مو راټول کړي یا نادري نسخې وې هغه هم پاته سوه، معلومه نه ده هزاره ګانو به پېلوځي کړي وي، او که به ور څخه وي. والله اعلم.

د شیخ صاحب د ځینو مضامینو د خیال خاکه لا راسره پاته ده. لیکن الفاظ ئې نسته. د ترکیب نزاکتونه ئې حافظې نه دي ساتلي، پر حافظه هم ډېر دروند بار تپل سوی دئ، اوس به د یوې پېښې روایت درته ولیکم چې فقط یوه لیري خاطره ئې زما سره پاته ده.

موسی شفیق چي وروسته بیا صدراعظم سو او تر هغه وروسته بندي سو، بیا شهید کړه سو، په ځواني کي یا په ټېپه ځواني کي ډېر لایق او مستعد ځوان او ښه لیکوال وو. په افغانستان کي دننه ئې هم د شرعي علومو تحصیل کړی وو او پلار ئې مولوي محمدابراهیم کاموي متبحر شرعي عالم او ډېر متقي او باعمله سړی وو. یو وخت په کندهار کي د مرافعې قاضي هم پاته سوی وو، چي د کندهار خلگو ئې د تقوی او علماوو ئې د تبحر اعتراف او تصدیق کاوه.

موسی شفیق په شرعي علومو کي د تخصص اخیستلو له پاره مصر ته ولاړ او په ډېر کم عمر کي له ازهر څخه ممتاز فارغ التحصیل راوگرزېدی. وروسته ئې په بین المللي حقوقو کي له امریکا څخه هم شهادتنامه تر لاسه کړه.

کله چي نوموړی له مصر څخه تازه راگرزېدلی وو. د کابل په مجله کي ئې چي هغه وخت ئې چلوونکی غالباً مرحوم عبدالرؤف بېنوا وو یو مضمون د سېنما په مورد کي د شرعي عدم ممانعت په باب لیکلی وو، چي دقیقاً زما په زړه نه دئ، اما شرعي منطق ئې تخمیناً دغه ډول وو، چي: حق تعالی انسانان د خلقت په باب و تفکر ته رابللي دي. له اوښ څخه رانیولې تر غماشي پوري ئې په قرآن کي د مثالونو ذکر راغلی دئ. آسمانونه، لمر، سپوږمۍ او ستوري او نور د خلقت آثار ئې د انسان د توجه او تامل له پاره یاد کړي دي. په سېنما کي هم دغه د خدای تعالی د قدرت نخښې د انسان د تعلیم او عبرت له پاره د پند او پانیات اخیستلو په مقصد ښکاره کېږي. یا په پخوانو زمانو کي د خلگو او امتونو کردار راښیي. که څوک په دغه منظور ورسي، نو جواز خو ضرور لري ممکن ثواب هم ولري.

د موسی شفیق مرحوم په روان عبارت او پر شرعي منطقو بناء مضمون په ښه ادب مفصل لیکل سوی او خپور سوی وو. کله چي دا مضمون کندهار ته راورسېدی د کندهار ملایان ئې ولمسول او وئې پارول. هر چیري به د کفر د حکم له پاره غولی غولی کېدل. البته د صحنې د مخ خلک ئې جان محمد اخندزاده، ملا غلام دستگیر اخند، نوراحمد اخندزاده، عبیدالله اخندزاده د ملا غلام نبي اخند زوی وه، چي د ټولو تر جمعي علم هم د موسی شفیق شخصي علم پراخ وو. نو که د صحنې و شا ته نور څوک لکه د مرحوم ملا عبدالحبیب اخند زوی یا د مرحوم ملا عبدالحق اخند لمسیان ورسره وه له هغو څخه زه نه یم خبر.

په دغه ترڅ کي یو چا (غالباً فضلو اخندزاده) و مرحوم شیخ صاحب ته مراجعه وکړه چي که هغه مهرباني وکړي او د موسی شفیق د مضمون په تردید او ابطال کي یو څه ولیکي. مرحوم حاجي عبدالغفور خان هغه وخت یو ښکلی مضمون نوشته کړ، چي د هغه عبارت، مقدمه او خاتمه زما په ذهن کي نه ده پاته اما په متن کي ئې دغه ډول استدلال سوی وو، چي:

که موږ سېنما پر خپلو اجزاوو ووېشو، دغه برخي له هغه څخه په لاس راځي:

١. قصه، نقل، افسانه.
٢. ساز او سرود کله هم رقص او نڅا ورسره.
٣. د لوبغاړو متحرک تصاویر او په هره برخه کي شرعي احکام موجود دي.
١. مضمون او قصه چي جوړي کړي

اسطورې دي. بېکاره وخت ئې په کتلو کي تېرېږي او د لهو لعب تر حکم لاندي راځي، نامطلوب ګڼل سوي دي.

۲. د سماع په باب چي قاطع حکم نسته خو د اورېدلو او اورولو شرایط ئې مشخص دي او هغه سماع د سینمائي ساز او سرود سره په هیڅ توګه د قیاس وړ نه ده. په سېنما کي ساز او آواز چي رقص او نڅا هم په ګډه وي د هغه له پاره په هیڅ ډول مغالطه او سفسطه هم په شریعت کي جواز نه سي پیدا کېدای.

۳. دا برخه د متحرکو تصاویرو برخه ده. که له دغه جدل څخه چي د سېنما تصویر بت دئ که نه، تېر هم سو او د حضرت ابراهیم علیه السلام له خولې د حق تعالی په کلام کي و بتانو ته د ناستي په باب د دغه مبارک آیت "اذ قال لابیم و قومه ما هذه التماثیل التی انتم لها عاکفون (الانبیاء: ۵۲) مفهوم په زړه کي ولرو او د حضرت علي کرمه الله وجهه دا پېښه را په یاد کړو چي کله پر ځینو دوستانو په داسي حال کي وربرابر سو چي هغوی د شطرنج په لوبه کي مستغرق وه او ده مبارک د پورته ذکر سوي آیت د یوې برخي په اقتباس " ما هذه التماثیل التی انتم لها عاکفون" هغوی د خپل عمل و بطلان ته متوجه کړه. اوس تاسي په خپله قیاس وکړئ چي د دین مقتدایان د شطرنج مهرې او ګټي داسي تماثیل وګڼي چي هغو ته ناسته بېکاره او ناجائزه بولي، آیا د سېنما د فلمي تصاویرو له پاره به دغه قیاس او دغه اقتباس چي "ما هذه التماثیل التی انتم لها عاکفون" ډېر پر ځای او مناسب نه وي؟؟؟

مرحوم حاجي عبدالغفور خان دغه مضمون ډېر ښکلی او منطقي لیکلی وو. خو د کندهار د ملایانو پر ذوق ښه نه ولګېدی او هغو په خپله لهجه او خپلو عباراتو یو مضمون وکیښ چي لیکونکی ئې عبیدالله اخندزاده (د ملا غلام نبي اخند زوی) وو، لیکونکی خو له سره نه وو او په ملایي کي ئې د طالب درجه وه. تر پایه د ده سره د پلار نوم سم یادېدی.

د هغه د ملایي مضمون نوره برخه مي په زړه نه ده، خو په خاتمه کي ئې داسي لیکلي وه:

"پس نو اې شفیقه، که ته بیا هم قانع سوی نه یې نو راسه چي د قندهار متبحر علماء تا ته پوره قناعت درکړي".

تر هغه وروسته بیا ما ته رامعلومه نه سوه چي موسی شفیق ته دا مضمون ور ورسېدی که نه؟ هغه ولووست که نه؟ او د هغه د انعکاس انتباه په دې باب څه وه؟ او آیا د کندهار د متبحرو علماوو؟ درجه هغه ته معلومه سوه که نه؟

ستا دي خدای مل سي.
په مخه دي ګلونه.
یار زنده صحبت باقی

ستا دعاګوی
هاتف
***

ډاکټر عبدالرزاق پالوال

# د غلو پر مېنه

(۱)

د ډنمارک شاهپور په ۱۳۳۷هـ ش کال چې ئې خپل تحصیلات بشپړ کړي ول، و خپلو هم صنفیانو ته ئې ویلي ول چې که تاسي د دنیا و هر مملکت ته د سیاحت له پاره غواړئ چې ولاړ سئ، زه مو بیایم. دوی چې په خپل منځ کښې سره پر ړغېدلي ول، ویلي ئې ول چې د اروپا هر مملکت دغسي دئ لکه ډنمارک -ژوندون ئې د لوړي مدني سویې دئ. موږ باید داسي مملکت ته ولاړ سو چې ژوندون ئې ابتدائي او د وحشت د سویې وي. دغه مانا افغانستان. رشتیا هم هغه زمان په کندهار کښې ډېر کار له خرو او اوښانو څخه اخستل کېدئ. نامیانو پر شا باندي اورونه سره بلول. یو ؤ بل ئې په چاړو او خنجرانو سره وهل. پولیس (ساتندویان) بې وسلې ول او تر احمدشاهي کلا دباندي د نامیانو اویجي وې. که څه هم ساتندویانو د ښار په سهېلي برخه کښې اغېز نه لاره، خو هورې د دغو نامیانو له اسیته څخه امنیت ؤ. نامیانو په خپلو منځو کښې جنګونه سره کول، خو په بل چا ئې کار نه لاره. دوی بدوان نه ول. غلاوي او شکوني ئې نه کولې.

دوی په دې نامیان ول چې تر وهلو لاندي ئې آه نه کېښ.

دوی (ډنمارکیان) راغلل په افغانستان کښې وګرځېدل. د سیاحت په پای کښې شاهپور (راسموسن؟) پوښتنه څني وکړه: په تاسي کښې څوک نه غواړئ چې د دغې افغاني ټولني د ژوندانه یو اړخ مو مطالعه کړئ وي؟ په دوی کښې ډاکټر کلاوس فردیناند Klaus Ferdinand ورته ویلي ول چې دی غواړي د پوونده کوچیانو د ژوندانه طرز او اقتصاد ئې مطالعه کړئ وي. دی په ۱۳۳۹ کښې بیرته افغانستان ته یوازي راغلئ، څو د کوچیانو مطالعه ئې کړې وي. لومړی سعدالدین شپون تر یو ځایه پوري ورسره تللئ ؤ. خو بیا د ادبیاتو فاکولتې رئیس له ما څخه غوښتنه وکړه چې زه ئې ملګرتیا وکم. دغه زمان زه د فاکولتې په دوهم صنف کښې وم. موږ له کابل څخه د مرکزي افغانستان تر پنجاب پوري، چې د ولسوالی مرکز ؤ، په لاری کښې ولاړو. بیا تر کوتل حاجي یعقوب وروسته له اخزرت څخه پر پښو تر غره واوښتو او د پوونده کوچیانو و مېني ته ورغلو. تر اوز شپو تېرولو وروسته پر

اسانو باندي يو ځای او بل ځای مو له پوونده کوچيانو سره ورځي او شپې تېرولې. په دغه سلسله کښې و غور ته ورسېدلو. دلته د پسابند د ولسوالۍ حکومتي مرکز ؤ. له دغه ځايه څخه يوه لار و فيروزکوه ته تلله چې يو زمان د غوريانو د بادشاهۍ مرکز ؤ او د جام هسک مونار هم هورې ولاړ دئ، چې لوی بادشاه محمد غياث الدين غوري ودان کړئ دئ. له دغه ځايه څخه و تولک ته ولاړو چې منهاج سراج، د طبقات ناصري ليکوال، خپل د سترګو ليدلئ حال بيان کړئ دئ او هغه د چنګېزخان د جنګ، چور، او ولجې بيان دئ.

د تولک او کاسي تر منځ د ختيځو خلجيو کوچيانو او لوېديځو ابداليو کوچيانو تر منځ د اقتصادي تجارتي تبادلې درې بازارونه ول. يو بازار ئې آبول، بل ئې ګوماو، او درېيم ئې چيلاس نومېدل. خلجيو کوچيانو له هند او بيا وروسته پاکستان او کابل څخه ټوکران، فلزي لوښي، ګوړه، بنګړيان، پېټکان او داسي نور څه وروړل. د دوی دکانونه په خېمو يا سپينو کرديو کښې ول چې يوه ليکه به ئې نجتي وې. ابدالي کوچيان چې له ميمنې، بادغيس او هرات له شاؤخوا څخه به ورغلي ول، دوی وری، غوري، کورت، او غيلي د تبادلې له پاره عرضه کول.

کله چې په ۱۳۴۳ کښې د غور حکومتي مرکز له تيواري Tayware څخه و کاسي ته وروړل سو. د کوچيانو دغه درې تبادلوي بازارونه ئې هم و کاسي ته ورنقل کړل. کاسي د پښتنو ښار او يو کوچنی بازار ؤ.

کله چې کاسي د غور اداري مرکز وګرځېدئ، نوم ئې په چخچران سره ورواړاوه. د چخچران نوم له نخچيرچران څخه اخستل سوئ دئ. کاسي د هريرود پر کيڼي غاړي باندي ودان کوچنی ښارګوټئ ؤ، خو نخچيرچران د هريرود پر ښي غاړي باندي ارت دښت دئ، چې هورې د هوسيو چراګاه وه. دوی و هوسيو ته نخچير وايي.

و کاسي ته تر رسېدو دمخه موږ يوه کلي ته پر لاري ؤ. په لار کښې پرله پسې د اسانو د سوو د پلونو پر شاوخوا باندي به درې - څلور سنګړي ايښوول سوي وې. موږ چې و کلي ته ورسېدو، د کور خاوند، زموږ کوربه، چې يوه کوچنۍ لور ئې لرله او ماينه ئې مړه سوې وه، دء راته وويل چې دء خپله د کښت مځکه د سيابند و پيرصاحب ته وربخښلې ده. نو دغه به خود د سيابند يا پسابند سيمه وه.

زموږ له خوني سره پر څنګ خونه کښې د شپې تر ناوخته پوري خلګ سره رغېدل. راغلو خلګو ورته ويل موږ د غلو پل ستاسي و کلي ته درولئ دئ. تاسي به زموږ غله په لاس راکوئ. کليوالو به ورته ويل: موږ د غلو پل تر ځان تېر کړئ دئ. دغي شخړي د دوی تر منځ د شپې تر ناوخته پوري دوام لارء.

هغوی چې له موږ سره رغېدل، دوې لاري ئې رايادولې. يوه اوږده لار وه چې موږ به مخ پر ختيځ د غرء په اوږدو ځو او پر راګرځو به. چې تر يوء کوچني کوتل به اوړو په دغه لار کښې مو شپه پر لاري تېرېږي، چې دوې ورځې به پر لاري يو. دوهمه لار په ماندء کښې ده. څنګه چې په ماندء کښې وني ولاړي دي، نو اسان پکښې تلای نه سي او پر پښو به ځئ. دغه د يوې ورځي لار ده. موږ چې پر پښو مزل کولای نه سوای، هغه اوږده لار مو ومنله.

په سبا ګهيز چي آس والا راغلل او موږ
پر تلو ؤ، يو د پاخه عمر سړی له آسه سره
راپيدا سو. دۀ و نورو ته وويل چي دوی زۀ
بيايم. د نورو ټولو چوپ غړوپ يو سو. هيڅا
هيڅ نه ويل. يو بل ځوانکی آس والا راسره ؤ،
چي دۀ هم هيڅ سپوڼ نه واهه. دۀ موږ نه پر
اوږدې لاري باندي بوتلو نه ئې پر لنډي
لاري، بل لا ئې پر درېيمي منځنۍ لاري
باندي سم کړو. ما دا پوښتنه کوله چي د
برابي خلګو ولي و موږ ته دغه د منځ لار نه
راښووله؟ چا څه نه وويل. کله چي موږ د غرۀ
و سر ته وروختلو، په لاندي دره کښي ښه
زرغون ځای ؤ. ما ورته وويل چي په دغه
ځای کښي به چاي درسره وچيښو. و زرغونه
ځای ته چي ورکښته سوو، هورې سکارۀ او
ايرې وې، او هم ئې يو غوزی ghuzay لرګي
پراته ول، او د اسانو خوشايي پراته ول. ما
وويل چي دلې پوونده کوچيان اوسېدلي دي
او داسي لنډ تللي دي.

هورې مو چاي وايشولې او وچيښلې.
کله چي پر اسانو سپرېدلو. د پاخه عمر مزي
کس راته وويل چي دغه د غلو مېنه ده. دوی
دلته اوسېږي او کښته د درې په خوله کښي
و لويې لاري ته لار نيسي. لاته وړمه ورځ ئې
پر لويې لاري باندي ديرلس کسان شکولي
دي. دوی هغه کسان ول چي د اختر له پاره
ئې مالونه بازار ته وړي او د هغې خوا ئې د
کورونو له پاره سوداوي کړي وې. دوی په
کال کښي اوز پلاوي پر هغي کښتي لويې
لاري باندي داړې وهي. دۀ ويل: غله چي پر
لويې لاري باندي لارويان ونيسي، دغې
چينې ته ئې راولي. په چا چي څه نه
جوړېږي هغه بيرته ايله کړي. له نورو څخه
مال او نغدي پيسې ټولي اخلي او چا ته يو څه
ورپرېږدي. موږ تر دغه ګړيه پوري ښه بيداره
ؤ. کله چي دغه راته وويل سول، زموږ خپه
مړۀ سول، غړي مو وتښتېدل، او د بدن
سپک ؤ شومه مو وختل. کله چي به د آس په
سوې سره يوه ګوسه gawsa واووښتله، يا
ولوېدله يا ورغښته او کړپ به ئې سو، زموږ به
زړۀ تر تلو تېر سو لکه چي وارۍ ئې راباندي
وکړ. د دغي تنګي درې په خوله کښي و يوې
او بلې خوا ته د ګوسو دېوالونه ول. درې
څلور ځايه ګوسي سر پر سر سره ايښوول
سوي وې، چي بې سرپوښه کوډلي غوندي
وې. دغه ئې خزې وې.

له دغي لنډي درې څخه و لويې درې
ته ورووتلو. تر څه درو ساعتو لار وهلو
وروسته د لوېديځو کوچيانو و مېني ته
ورسېدلو. موږ په مېنه کښي تر اوز کړديو تېر
سوو، او د هغي کړدۍ و مخي ته کښته سوو
چي و مخي ته ئې يو اوم ځوان (ځوانکی)
ولاړ ؤ. په کړدۍ کښي دننه څلور ښځي وې.
يوه د کور د خاوند مشره ماينه وه او بله ئې
کشره ماينه وه، او دا په قوم سوري وه. دوی
ويل سوريان پښتانه دي، خو زوريان پښتانه
نه دي. درېيمه ښځه د ځوان د مشر ورور
ناوې وه. څلرمه ښځه د کړدۍ د خاوند لور
وه، چي تازه لنګه سوې وه. د دې له پاره څو
زموږ سترګيا پر موناني باندي لوېدلې نه وي،
او موناني ناروغه سوې نه وي، نو ئې په يوه
پياله کښي څه اوبه راوړې څو موږ په دغو
اوبو کښي خپلي خمچې ګوتي وروهلي وي.
په پخوا کښي ئې د ښې پښې بټه ګوته په اوبو
کښي وروهله او دغه اوبه ئې په موناني
چيښلې چي خود به ئې لا دغه هم د ناروغۍ
سبب ګرځېدلې واى.

په پرځنګ کړدۍ کښي يو سپين
ږيرۍ سړی ؤ. موږ هلک وروا ستاوۀ چي
راسي له موږ سره مجلس وکي. دۀ ځان

ودرېغاوه، او دلیل ئې دا وايه چې مور ولې د دء تر کېږدۍ راتېر سوو. تر مور داسي څه ساعت وروسته د خلجيو کوچيانو دوه سپاره هم راغلل، چې مور لا چای چیښلې دوی د کېږدۍ و مخي ته ودرېدل چې اسان ئې له ټکه مستۍ څخه سره مخ او شاگرځېدل چې په دغه ترڅ کښې ئې له یوی څخه توپک هم ولوېدئ. دوی ویل زمور بارونه د بازار له پاره راپسې دي. مور نغورېدلي یو چې په لار کښې غله دي. ځکه نو مور ئې د مخنيوي له پاره تر رادمخه سولو. دوی دواړه په پیاوړو بوړیانو سره وسلوال ول. د دوی بارونه چې پر اوښانو بار ول تره غونۍ ښامنی مهال راورسېدل. دغه کاروان خپل بارونه و مېښي ته ځرمه واړول. څه نیم ساعت وروسته زمور کور به چې مور ئې په کېږدۍ کښې ناست ؤ، هم راورسېدئ. که څه هم اور بل ؤ او د کېږدۍ فضا خوپه روڼا وه، خو لا بیا مو هم د دء سوکوی ښه پوره لیدلای نه سوای. دی خود ناآشنا ښکارېدئ، خو ږغ ئې آشنا ؤ. هېښ پاته وم چې دغه ږغ آشنا او څېر ناآشنا سړی څوک دئ یا دا څه پېښنه ده چې سړی په سوکوی ناآشنا او ږغ ئې آشنا دئ. سد مي نه په رسېدئ. کله چې مور څه گړی سره وږغېدلو، له موضوعاتو څخه وپوهېدم چې دی هغه څوک دئ چې برايې ئې په ځرمه کور کښې له کلیوالو سره شخړه وه چې مور د غلو پل ستاسي و کلي ته درولئ دئ. دی هم هورې په مور خبر سوئ ؤ، خو سره لیدلي مو نه ول. نو له مور سره هغه مزی جگ کس او هغه دوه پوونده خلجي کوچیان د شپې سره یو ځای او و یوء سترخان ته سره ناست ؤ. نو زمور د دوو ملگرو په زړء کښې به لا څه ورگرځېدل.

***

لیکوال: جبران خلیل جبران
ژباړونکی: احمدالله څرگند

## دوه زاهدان

یو وخت په یوه غره کي دوه زاهدان اوسېدل، د خدای عبادت به ئې کاوه او دواړه یو پر بل ډېر گران وه.

د دوی ټوله شتمني یوه خټینه کاسه وه.

یوه ورځ د مشر زاهد په زړه شیطان ننووت، کشر زاهد ته راغی او ورته وئې ویل: "له ډېري مودې راهیسي مور په گډه ژوند کوو، نور نو د جلا کېدو وخت راغلی، راځه چې خپله شتمني سره ووېشو".

کشر زاهد خوابدی سو او وئې ویل: "اې وروره! ستا بېلتون ما ډېر ځوروي؛ خو که ستا تگ ضروري دئ نو ولاړ سه". وروسته ئې خټینه کاسه راوړه، هغه ته ئې ورکړه او وئې ویل: "وروره! دا مور نه سو وېشلای، دائې ستا".

مشر زاهد وویل: "زه خیرات نه غواړم، زه خپله برخه غواړم، دا باید ووېشل سي".

کشر وویل: "که کاسه ماته سي، نو د چا په درد به وخوري، ستا که زما؟ که دي خوښه وي نو راسه چې پچه پر واچوو".

مشر زاهد بیا وویل: "زه یوازي خپل حق غواړم، زه نه غواړم چې انصاف او عدالت په بې ځایه قرعه کشیو تر پښو لاندي کړم، دغه کاسه باید سره ووېشو".

ځوان زاهد ته هم بل کوم دلیل پاته نه سو او وئې ویل: "که په رښتیا سره غواړې چې دا کاسه ماته سي نو اوس به ئې دستي ماته کړم".

د مشر زاهد بڼه له درده توره واوښته او چیغي ئې کړې: "اې بې غیرته، بېرندوکې! خو ولي جنگ نه کوې؟!"

***

حاجي عبدالظاهر څرک

# شېرين عمر چې تېرېږي درېغه درېغه!

## د مولانا جلال الدين بلخي مزار

يو وخت د ترکيې د قونيې په ښار کې د مولانا جلال الدين بلخي رحمه الله زيارت ته ورغلم. قونيه د نړۍ د مشهورو ښارو څخه يو ښار دئ. د نړۍ ستر شاعر مولانا جلال الدين رومي په دې ښار کې استوګنه کړېده او زيارت ئې هم دلې دئ. مولانا ته ځکه رومي ويل کېږي چې دا منطقه يو وخت د روم په نامه يادېدله. د مولانا زيارت د قونيې د ښار اهميت او شهرت زيات کړی دئ. د مولانا د شعر انګازه تر ډېره وخته توده وه او د خپل سرشاره طبيعت له مخي ئې په دري ادب کې يو شهکار پرېښود چې خلک ئې د مثنوي په نامه يادوي.

د قونيې نفوس ۷۶۲۰۰۰ زره نفره دي.

د نړۍ ډېر سيلانيان د مولانا صاحب زيارت ته راځي، خلک ئې ډېر آرام طبيعته او سرمايه داره دي. مسلماني ئې په طبعه کې اخښلې ده. د قونيې پر هر لوی چوک او پُل د مولانا صاحب اشعار او وجيزې ليکلي سوي وې. په قونيه کې اکثرو ښځو پوړني پر سرول، چې دا هم د مولانا صاحب د روحانيت تاثير بللای سو، ځکه هغه د اسلامي نړۍ ډېر لوی متصوف او ځلانده ستوری وو.

د قونيې څخه يو وخت سلجوقيانو د پلازمېني کار اخيست. د دوی پاچا علاؤالدين سلجوقي د مولانا پلار سلطان بهاؤالدين ولد ته ويلي وه، چې ته دلې يې پاچهي زما حق نه ده. د مولانا پلار ورته وويل چې زما يوه مدرسه په کار ده. پاچا هم ښه مدرسه ورجوړه کړه چې د مولانا پلار ډېر شاګردان پکښې وروزل.

موږ هلته لومړی د شمس تبرېز د زيارت ته ولاړو. د هغه ځای خادم موږ ته د نوموړي زيارت په باب معلومات راکړل. يو عيسوي سيلاني هم په زيارت کې مراقبه وو.

شمس تبرېز په ۵۸۲هـ ق کال زېږېدلی دئ. د حضرت مولانا معاصر وو. د شپېتو کالو په عمر وو چې د مولانا صاحب سره ئې لومړی ملاقات وسو. وايي چې مولانا د حوض پر غاړه ناست وو او کتاب ئې مطالعه کاوه. شمس تبرېز پوښتنه ځني وکړه چې دا څه شي دئ؟ مولانا ورته وويل چې دې ته قال وايي. شمس لاس وراوږد کړ کتابونه ئې اوبو ته واچول.

مولانا صاحب ډېر خواشينی سو، شمس ته ئې وويل: دا دې څه وکړه؟ دا ډېر مهم کتابونه وه. شمس اوبو ته لاس وراوږد کړ کتابونه ئې وچ ورته راپورته کړل او مولانا ته ئې وويل: دې ته حال وايي. تر دې وروسته د دوی انډيوالي سره ټينګه سوه. مولانا صاحب پر شمس تبرېز عاشق سو. بې له ده ئې هيڅ طاقت نه سوای کولای.

حضرت شمس تبرېز د يوې توطيې په نتيجه کې چې د مولانا صاحب زوی علاؤالدين محمد هم پکښې شامل وو د اوو کسو په واسطه د چړو په وهلو سره شهيد کړه سو او يوه څاه ته ئې واچاوه. وروسته ئې مړی مريدانو پيدا کړ او د هغه څاه پر غاړه ئې ښخ کړ. وايي دغه اووه نفره چې شمس تبرېز ئې په شهادت

ورساوه په سختو مرضو اخته او مړه سول. د مولانا زوی هم د ناجوړۍ د لاسه مړ سو، پلار ئې هديرې ته حاضر نه سو.

د مولانا صاحب زيارت په نسبتاً لويه احاطه کي جوړ سوی دئ. ډېري ونې، ښايسته ګلان او پاک چمنان پر راګرځېدلي دي. کله چي موږ د زيارت احاطې ته ورداخل سولو، په سوونو سيلانيان ولاړه ول او شاوخوا ګرځېدل، چي ډېری ئې جاپانيان معلومېدل.

مولانا صاحب په ۶۰۴ هـ ق کال په بلخ کي زېږېدلی دئ او په ۶۷۲ هـ ق کال په قونيه کي مړ سوی دئ.

پلار ئې په سلطان العلماء سره مشهور وو. د محمد خوارزمشاه سره د اختلاف په نتيجه کي ئې بلخ پرېښود او د حج پر لور رهي سو. په دې وخت کي مولانا صاحب د ۱۴ کالو وو. دوی لومړی په نيشاپور کي واړول، هلته ئې د شيخ فريدالدين عطار سره وکتل. هغه خپل کتاب اسرارنامه ورته اهداء کړه او وئې ويل چي يو وخت به له جلال الدين څخه ډېر لوی سړی جوړ سي.

د مولانا صاحب پلار سلطان العلماء د حق ويلو په جرم له نيشاپور څخه تبعيد سو او بغداد ته راغی. تر دې وروسته مکې شريفې ته ولاړی، تر حج کولو وروسته شام ته ولاړی. وروسته ئې په قونيه کي دايمي استوګنه غوره کړه.

د مولانا صاحب پلار د ۸۵ کالو په عمر مړ سو. په دې وخت کي مولانا د ۲۴ کالو وو. د مثنوي معنوي کتاب ئې چي څلوېښت زره بيته لري وليکی او تر اوسه نړۍ وال شهرت لري.

د مولانا صاحب بل کتاب د ديوان شمس په نامه يادېږي چي دا هم پنځوس زره بيته لري. د مولانا صاحب په زيارت کي څو کوچني لوډسپيکرونه نصب وه چي نل پکښې ږغېدی:

بشنو از نی چون حکايت ميکند
از جــدائيها شـــکايت ميکند

په يوه الماری کي د مثنوي شريف قلمي نسخه پرته وه، چي دا پخپله مولانا صاحب ليکلې وه.

په الماريو کي زيات قلمي قرآن شريفونه پراته ول چي د سرو زرو کارونه پر سوي ول. د ده روح ته تر دوعا کولو وروسته راووتو.

## چاه بهار بندر

څو کاله مخکي د ايران چاه بهار بندر ته تللي وو. د هغه ځای تر ليدو وروسته مو وغوښتل چي تهران ته ولاړ سو. په هوايي ډګر کي د انتظار په سالون کي ناست وو. شاوخوا ډېر اېرانيان نر او ښځي هم د الوتکي په انتظار ول.

د دوی په جمله کي زموږ افغاني مهاجر چي اوس ئې د اېرانيانو سره چنداني فرق نه کېدی هم ګډ ول. مجلس شروع وو. يوه اېراني د خبرو په ترڅ کي وويل چي نن په اخبار کي نوشته وه، چي يو کور ته غله ور اوښتي ول، شيان ئې څني وړي دي. ويل کېږي چي دا غله افغانان دي.

د مجلس په منځ کي يوه هزاره ګۍ نجلۍ ناسته وه. دا دې سړي ته ببره سوه او ورته وې ويل: هر وخت چي ستاسي اېرانيان غلا وکړي تاسي ئې پر افغانانو تاوانوی. هيڅکله بې ثبوته خبري مه کوه.

هغه اېراني په غار څني ننوتی او چپ سو. ما ته د دې هزاره ګۍ د وطن دوستۍ احساس ښه خوند راکړ.

## احمدظاهر

د تاجکستان د دوشنبې په ښار کي عام خلک زموږ د احمدظاهر د ږغ سره زياته مينه لري. په اکثره هوټلو او رستورانو کي د دوی

هنرمندان په ژوندۍ بڼه غزلي وايي، چي اکثره د احمدظاهر سندري وي.

ما ته به اکثرو تاجکانو ويل: موږ په افغانستان کي د دوو کسانو سره زياته علاقه لرو: يو احمدظاهر، بل احمدشاه مسعود.

يوې ښځي چي د رستورانت کارمنده وه، زما څخه ئې زما د نامه پوښتنه وکړه. زما تر جواب ورکولو وروسته دې سمدستي راته وويل چي: د احمدظاهر د پلار نوم هم عبدالظاهر وو.

اوس چي د احمدظاهر د مرګ ۳۴ کاله کېږي تر اوسه هم په افغانستان، تاجکستان او ايران کي زيات مينه وال لري.

احمدظاهر د ۱۳۵٦ش کال په ژمي کي د جلال آباد پر لار ما وليدی. د اوبو پر غاړه ئې موټر درولی وو. مېرمن ئې ورسره وه. ده کاغذباد په هوا کړی وو، مېرمنې ئې څرخه ورته نيولې وه.

په دوبي کي د کابل په شهرنو او پغمان کي هم ما ليدی، موټر به ئې چلاوه. انډيوالان به ورسره ناست ول. خوله به ئې له خندا ډکه وه او ډېر سرشاره ځوان وو. د ده غزلي اکثره د ډېرو لوړو شاعرانو دي:

معشوقه به سامان شد تا باد چنين بادا
کفرش همه ايمان شد تا باد چنين بادا
مولانا جلال الدين بلخي

برويد ای حريفان بکشيد يار مــارا
به من آوريد يک دم، صنم کريز پارا
مولانا بلخي

زچه جــوهر آفريدی، دل داغ دار مارا؟
که هزار لاله پوشيد، پس ازين مزار مارا
سيمين بهباني

دوش از مســجد سوی ميخانه آمد پير ما
چيست ياران طريقت بعد ازاين تدبير ما
حافظ

ناله به دل شــد گــره راه نيسان کجـــاست؟
خانه قفس شد به من، طرف بيابان کجاست؟
خليل الله خليلي

بياييد، بياييد، که گلزار دميده است
بياييد، بياييد، که دلدار رسيده است
مولانا بلخي

عاشق شده يی ای دل سورايت مبارک باد
زنجير جنون ای دل بر پايت مـــبارک باد
مولانا بلخي

ای ســـاربان آهســـته ران کارام جانم می رود
وآن دل که باخود داشتم با دل ستانم می رود
سعدي

## د مدينې منورې په زيارت کي روژه مات

خو کاله مخکي د روژه مات پر مهال د نبي عليه السلام پر مبارک حرم وربرابر سوم.

د حرم شريف په دروازه کي يو کوچني عرب پسله سلامه تر لاس ونيولم، راته ټينګ سو، چي روژه مات زموږ سره وکړه. څرنګه چي ما د روژه مات وعده د شناخته کنداريانو سره کړې وه، له ده څخه مي عذر وغوښتی. خو ده ډېر ټينګار کاوه، آخر مي په يو زحمت ځان ځني خلاص کړ.

د خپل وطن کوچنيان مي جګ سترګو ته ودرېدل. هغه کوچنيان چي جنګ موږ او پلار ځني اخيستي دي او د خير غوښتلو بله لار نه لري.

زموږ او عربستان معامله برعکس ده.

د دوی کوچنيان پر دې ټينګار کوي چي خير واخلئ. زموږ کوچنيان پر دې ټينګار کوي چي خير راکړئ.

دوی په هغه حديث شريف ډېر عمل کوي، چي: که چا يوه مسلمان ته روژه مات ورکړ، د ده ثواب هم د هغه د روژې په اندازه دئ.

***

انجنیر عبدالباقي بینا

## په تېرو څلورو لسیزو کي

# زموږ د ښوونې او روزنې بهیر

غواړم د پورته عنوان د ښه ترا توضیح او تشریح په خاطر زما د ژوند د ښوونیزې دورې له شروع څخه تر اخره خپل د ستر گو لیدلی حال وړاندي او په خلص ډول د هري دورې یوه یادونه پکښې وکړم:

کله چي زه لا کوچنی وم او پلار مرحوم مي د یوه بل استاد په لاس چي تاج محمدخان نومېدی (د مشرقي لېسې[1] اداري) ته واستولم تر څو مکتب ته مي داخل کړي. په دې وخت کي د مکتب مدیر مرحوم محمدانور ایازي وو، چي زما د پلار د ټولگۍ ملگري وو او هم دوه سرښوونکي چي دواړه د نعیم خان په نامه وه زما د پلار شاگردان ول.

نو په دې خاطر ئي زه په ډېره مینه مکتب ته داخل کړم د اول صنف استاد مو ښاغلی قاهرخان نومېدی چي فعلاً هم ژوندی او په امریکا کي ژوندکوي. ډېر مهربانه، ډېر درونداو په ښوونیزو کړونو پوه سړی وو.

دا وخت مرحوم محمدظاهرشاه په افغانستان کي ټولواک وو او د وطن اقتصادي وضعه هم ښه نه وه خو بیا هم تعلیم مفت وو. د مکتب انضباط ډېر ټینگ وو او استاد د یوه باقدرته شخص په توگه خپله وظیفه سر ته رسوله. د شاگرد حیثیت د ده د لیاقت پر اساس ټاکل کېدی. هیڅ شاگرد د خپل پلار د قدرت یا دولت پر اساس د مکتب له قانون څخه سرغړونه نه کوله. مستعد شاگردان تشویقېدل. زموږ مکتب که څه هم په فزیکي لحاظ ډېر زوړ، ټوله خامه او په کوڅو کي وو. ولي د کیفیت په لحاظ ئي ډېر خاص او لایق شاگردان فارغه کول. په هغه وخت کي د دیموکراسۍ تر نامه لاندي مختلفو حزبونو مظاهرې کولې، کنفرانسونه او ډرامې به ئي په

[1] پخوا د هرات بازار جنوب طرف د شېرعلي خان دهنې په کوڅه کي چي د مکتب کوڅه ئي هم بلله موقعیت درلود، چي په (۱۳۰۰هـ ش) کال کي تاسیس سوېده او بیا په (۱۳۵۹) کال د شکارپور دروازې د چوک غربي طر ف ته په نوي موقعیت جوړ سوي مکتب ته نقل سوه. اوس هم هلته موقعیت لري او یو فعال مکتب دئ.

مکتبونو کي نندارې ته وړاندي کولې، په دې خاطر تر يو ځايه په درسي نظام کي ګډوډي موجود وو.

ولي کم (کوم) وخت چي موږ په شپږم صنف کي وو د مرحوم داودخان شهيد دوره پيل سوه. په دې دوره کي د مکتب مظاهري بندي سوې او تر تشو شعارونو لاندي کانفرانسونه او ډرامې جوړول په مکتبونو کي بند سول. تعليم ته نوره پاملرنه ډېره سوه، نظم او ډسپلين په ښوونځيو کي جاري سو. هر مازيګر چي به موږ رخصت سولو په لين به ئي درولو، غيرحاضر شاګردان به ئي له لينو رااېستل او جزا به ئي ورکوله. د شاګردانو نظافت کتل کېدی او د استادانو له خوا پسله ځو توصيو څخه رخصتېدل.

کم وخت چي موږ اتم صنف ته راورسېدلو د اتم صنف څخه نهم صنف د تلو له پاره بايد شاګردانو کانکور امتحان ورکړي وای، چي په دې کي که څوک ناکامه سوي وای، له مکتب څخه ئي خارجول دا خاص په دې خاطر وو چي کوم شاګرد تر اتم صنف پوري بيا هم په صحيح ډول زده کړي نه سوای کولای او يا ئي نه کول نو بايد د دولت مصرف نور نه وای په سوی او هم په اينده کي يو نالايق فرد جامعې ته نه وای وړاندي سوی. چي په دي کار سره د متعلمينو سويه نوره هم لوړه سوه او د کښتو صنفنونو شاګردانو نور هم کوښښ کاوه چي ښه درسونه وواييي، تر څو په کانکور کي ناکامه نه سي او له مکتب څخه خارج نه سي. له بله طرفه فقط لايق شاګردان نهم صنف ته کاميابه کېدل چي زموږ د دورې شاګردان کوم چي زموږ سره په نهم صنف کي وه سويه ئې دونه لوړه وه چي مفتشين به راغلل د دغو شاګردانو څخه به ئې د پوښتنو جرئت نه درلود. څکه همدغو شاګردانو په هغه وخت کي د مکتب د کيميا او بيالوژی او فزيک مضمونونه تر جاري نصاب ډېر لوړ کتابونه مطالعه کول خصوصاً اهل هنودو شاګردانو چي ډېر زيار کښه ول.

بايد ووايم چي زموږ استادان چي په رښتيا سره د معنوي پلرونو وظيفه ئې پر ځای کول د لوړ استعداد خاوندان ول. د خپلو مضمونو پر درس ورکولو باندي پوره مسلط ول، پر شاګردانو ډېر مهربان او د هر شاګرد د تعليم او تربيي غم ورسره وو. په مکتب، بازار او کوڅه کي به ئې هر شاګرد تر نظرلاندي وو، چي زما په شمول د ډېرو شاګردانو پلرونو د مکتب له شروع څخه تر ختمه پوري دې ته ضرورت پيدا نه کړ، چي مکتب ته راسي او يا ئې د خپلو اولادو په تعليم او تربيه فکر بند سي. زموږ د دورې لايق او وړ استادان چي هر يو ئي علحيده، عليحده د ستايلو وړ دئ، چي د هغو له جملې څخه ښاغلی قاهرخان چي زما د اول صنف استاد وو او وروسته د لېسې په جريان کي زموږ د ساينسي او اجتماعي علومو ډېر تکړه او د ستايلو او ويلو وړ استادان وه چي هر يو ښاغلی استاد محمدمعصوم هوتک، ښاغلی استاد عبدالخالق آغا، ښاغلی استاد حاجي عبدالکريم (حاجي اغاشېرين)، مرحوم استاد عبدالرازق آغا، مرحوم استاد عطامحمد خان چي د رياضياتو يو وتلی استاد وو، ښاغلی استاد حاجي محمدخان، ښاغلی استاد

ابراهیم خان زموږ د دري مضمون استاد چي ډېر ښایسته درس ئې راکاوه او زه ئې خپله په دري او فارسي ژبه ډېر پوه کړم او زه له دوی ټولو څخه ممنون یم. ژوندي دي خداي پاک راته ژوندي لري او زه اوس هم ډېراحترام ورته لرم اود مړو دي خداي پاک جنت فردوس نصیب کړي همېشه دوعاورته کوم.

په لسم صنف کي د ثور کودتا کرغېړنه دوره شروع سوه. د لیاقت معیار ختم سو. د احمدشاه بابا لېسې یو معلم چي خاص لیاقت ئې هم نه درلود مگر حزبي وو زموږ مدیر سو او زموږ مدیر ماسټر حسن خان چي ډېر یو بانظمه او د انظباط خاوند سړی وو تبدیل سو. مارشونه او په مکتب کي ډرامونه او جلسې شروع سوې. په مکتب کي د قرآن کریم د ویلو یو اتاق وو، چي موږ به د قرآئت (قران ویلو) په ساعت کي به هلته تللو او شاگردانو به د استاد تر ښووني لاندي قران زده کړه کول له هغه څخه قرآنونه ټول سوه او د خلقیانو د جلسو او سازمان اتاق ئې جوړ کړ. شاگردان ئې په زوره حزب ته وربلل. که به څوک نه ورتلل هغه به تهدید، توهین او څورول کېدی. تر دې چي اکثره شاگردان د مکتب پرېښوولو ته مجبوره سوه. زما یو ټولگیوال دینه نات نومېدی، له اهل هنودو څخه وو. یوه ورځ په شېرعلي خان دهنه کي په مخه راغی او ژړل ئې چي ما د کوچنیوالي څخه دا هیله درلوده چي زه مکتب خلاص کړم د داکټری فاکولتې ته به ځم ولي دا ظالمان مي نه پرېږدي اوس ځم او دا ښار او وطن پرېږدم.

له دې دورې سره د پوهنیز نظام د نزول دوره شروع سوه. د مکتبونو، پوهنتونو، مدرسو ډېر پوه پوه استادان د اخواني په نامه بندیان یا ووژل سوه. د پوهني بهیر د تقوا، لیاقت او ایمانداری له معیار څخه د حزبي توب، خلقي توب او خلقیانو ته د وفادارۍ پر معیار ودرېدی. پردي تور لاسونه د معارف د خرابېدو له پاره رااوړده سول، د خلقي حکومت پر ضد د جنگونو په شروع کي د مکتبونو سوځل او لوټول شروع سول. زموږ د مکتب (مشرقي لېسې) مېزونه، چوکۍ او د لابراتوار سامان د دوهمي ناحیې په کوڅو کي خرڅ سول او مکتب (د ارهډي بمب[2]) په ذریعه چي د پلنډیانو په گاډۍ کي د یوه جهادي قوماندان له خوا راوړل سو والوزول سو. زموږ د مکتب د ادارې د شاگردانو اسناد په ماله جات کي په یوه اتاق کي پراته وه او هغه عکسونه چي د ددولسم صنف د شهادتنامې له پاره په اداره کي پراته وه د نوموړي اتاق قوماندان به د هغو عکسونو له رویه د همدغه مکتب هلکان له خپلو کورونو څخه په دې نامه چي ته حزبي وې بېول. د هغه وخت حکومت ځوانان نیول او بندي کول ئې، په دي نامه

[2] هغه بمب چي د نپال بمب په نامه یادېدی او هر وخت چي به د شورویانو (سرو لښکرو) د جنگي الوتکو په ذریعه ویشتل کېدی په مځکه کي به ئې ارهډ (لوی ځاه چي اوبه ولري) جوړ کړ. نو ځکه ئې په عامه اصطلاح ارهډي بم باله. د دغسي بمونو د استعمال نمونې زموږ د کندهار په ماله جات سیمه، ارغنداو اولسوالی او نورو اطرافو کي تر ډېره وخته پاته وې. کله ناکله به و نه چاودېدی او بیا به مجاهدینو له هغه څخه د یو ځای په چپه کولو کي استفاده کوله.

چي تاسي د مجاهدينو سره مرسته کوی. زه هم د دوارو طرفو له خوا ځورول سوم. اول د مجاهدینو د هغه اتاق د قوماندان له خوا احضار سوم چي ته حزبي يې ولي چي عکس دي په مکتب کي پروت وو (باید وویل سي چي ټول قوماندانان داسي نه وه او اکثره ئې ډېر سپېڅلي، ایمانداره او پر وطن مین خلگ وه).

بیا په (۱۳۶۰) کال کي د خاد په ریاست کي د خپل پلار سره چي يو سپين ږيرى استاد وو په دې نامه بندي وم چي ته د مجاهدينو سره کومک کوې. په دې کارونو سره کرار کرار د ښار مکتبونه فقط په بانډارخانو بدل سوه. هلکان فقط په دې خاطر ورتلل چي د مکتب د کارت خاوند له عسکرۍ څخه خلاص وو. د اولسواليو او کليو مکتبونه خو بيخي د سره تړلي وه.

زه د (۱۳۶۱هـ ش) کال په پاي کي هغه وخت چه په همدي کال کي دوه دري ځله د حکومت له خوا بندي سوم وروسته کابل ته ولاړم. هلته تصادفاً د کانکور يو امتحان د متفرقه امتحان په نامه وو، چي د ټولو ولاياتو څخه د دوولسم صنف شاگردان کابل ته راغلي وه. په کانکور کي د شمول حق ورکړه سو. یو کار چي تر هغه وخته لا د پخوا پر نظم پاته وو هغه د اداري فساد، رشوت او واسطي نه لرل وو. دا چي زه کشر هم وم او د کابل په رسمي دوايرو کي چنداني بلد هم نه وم خو په کانکور کي د شاملېدو په مراحلوکي بې له کومي واسطې، رشوت او سپارش څخه شامل سوم او هم د شاگرد د ورتيا له رويه هلکان کامياب سول او په ډېرو شاگردانو کي موږ درې نفره يو

انجينر آصف چي اوس په امريکا کي دئ بل انجينر تېمورشاه چي فعلاً هم په کندهار کي وظيفه لري او بل زه خپله د کابل پولي تخنيک ته کامياب سولو، چي دا کار ئې د توصيف او يادوني وړ دئ، چي متاسفانه دا کار اوس نسته او تر ډېره حده واسطه او رشوت ډېر کار کوي.

د (۱۳۶۱) کال وروسته تر څو چي زه په کابل کي وم بيا پولي تخنيک ته له کندهار څخه نور شاگردان نه راغلل ځکه اصلاً د سره کانکور څو کاله په کندهار کي نه وو موجود چي تر اوسه پوري دا سيمه د لوړو تحصيلاتو درلودونکو اشخاصو د کمي سره مخ ده.

فعلاً چي د کميت له لحاظه د پوهني او روزني د شاگردانو کچه ډېره لوړه ده خو متاسفانه د کيفيت په لحاظ ئې سويه ډېره ټيټه ده. د لوړو تحصيلاتو او خارجي بورسونو تلل تر ډېره حده په واسطه او رشوت باندي تکيه لري. خو بيا هم هيله لرو، چي عام خلگ، روڼ اندي، ځوانان په خارج کي زموږ علمي څېرې، لوړ حکومتي چارواکي ، تاجران او د ټولني زاړه او واړه د خپل اينده نسل د ښه ترا روزلو په خاطر لاس سره ورکړي او د خداي (ج) او دې بيچاره ملت د ښه راتلونکي په خاطر لاس په کار سي. تر څو چي زموږ د ښوونې او روزنې اساس جوړ نه سي بايد د ښې راتلونکي هيلي و نه لرو. په تېره بيا پښتانه او دغه زموږ سيمه چي فعلاً ئې علمي کدرونه له هيڅ سره مساوي دي. که جاري حالت همداسي ادامه پيدا کړي ليري نه ده چي موږ به خپل هر څه د لاسه ورکړو.

***

احمد صمیم

# د کوچنیوالي یوه خاطره

په بالاخانه کي د همسایګانو چرګه په یوه لوړه تاخچه کي پر هګۍ باندي ناسته وه. ما و امیرمحمد ته چوخه ورکړه، امیرمحمد زما پر اوږو باندي ورپورته سو، هګۍ ئې څني را اخیستل، چرګي غالمغال او ناري جوړي کړې، خو امیرمحمد کامیابه سو او هګۍ ئې څني راواخیستل.

چرګي خورا بې شرمي شروع کړه، د نسوارو یو مات بټل د تاخچې پر څنډه پروت وو چي د چرګي له پاره د اوبو د کنډولي کار څني اخیستل کېدی. په دغه وخت کي چي امیرمحمد راتا کېدی هغه بټل ئې پر سر راولوېدی، ګوره چي په دغه کشمکش کي بټل راولوېدی او که چرګي د خپلي هګۍ د انتقام له پاره بټل په ډکه وواهه او د امیرمحمد پر سر راولوېدی، خو ما ته پر دې باندي خندا راغله چي امیرمحمد په دغه ورځ سر هم خریلی وو، چي ډب ئې تر اوسه زما په یاد دئ.

د چرګي په غالمغال همسایه خبر سو، را الا ئې کړه راورسېدی. دا نو هغه وخت دئ چي زما او د امیرمحمد پر زینو باندي سره جنګ وو، چي کوم یو دمخه ژر له زینو څخه تا سي. زه څني دمخه سوم او د هګۍ فاتح په لاس ورغی.خو هغه د بټل ډب پر خریلي سر باندي ما اوس هم خندوي.

**بله خاطره**

د نبوي مسجد څخه د کوټې پر لور راروان وم. پر دغه راسته باندي په لکونو خلک نور هم روان ول. یوه کوچنۍ ښایسته پیشي په دغه راسته کي داسي مطمئنه او آرامه بیده وه چي هیڅ تشویش ئې نه کاوه او نه بل چا کار په درلود.

ما ته په دې وخت کي خپل وطن را په یاد سو، ما ول: کشکي زموږ کوچنیان په خپل کور کي دغسي آرام بیده وای.

**بله خاطره**

زه کوچنی وم، چي زموږ د همسایه امیرمحمد نامي سره مي جنګ سو. سر مي ورمات کړ او ویني څني رواني سوې، په ژړا کور ته ولاړ. زه په خپل کور کي پټ سوم، چي نابېره په شره کي دروازه وټکېده. د امیرمحمد پلار ولاړ دئ او سپکي سپوري وایي. زما پلار دروازه ورخلاصه کړه. امیرمحمد ئې تر لاس نیولی دئ په وینو ککړ ولاړ دئ. ول: وګوره دغه دئ زوی دي زما د زوی سر مات کړی دئ او فلانه ده مُستانه ده.

پلار مي راغی زه ئې تر لاس ونیولم او د امیرمحمد د پلار په لاس ئې ورکړم، ول: دغه دئ ستا زوی دي هم سر ورمات کړي چي ادا په ادا سي. د امیرمحمد پلار خجله سو، درد ئې سوړ سو، څه ئې نه وویل کور ئې ودان. امیر محمد ئې تر لاس ونیوی او سوړ کور ته رهي سو.

***

# غزل

بس پر سړ دار راباندي تېره سوه

شپه په انتظار راباندي تېره سوه

اوښکي مي له سترګو پاکولې چې

ورځ په دغه کار راباندي تېره سوه

تا ته درتلو لار ښخې اغزنه وه

سره غرمه پر لار راباندي تېره سوه

ستا له مرګه ورسته زندګي زما

ستا پر خرمزار راباندي تېره سوه

ستا د "میني" هغه لیوني شیبه

ولې په انکار راباندي تېره سوه

شاعره، مینه انتظار

شاداب

# *Kandahar*

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department




د زر او یوې شپې خوږه پښتو ترجمه
د دې ټوک په خپرېدو سره پای ته ورسېده




The Afghanistan Subnational Governance Programme